# فهرست

# د حق په حضور کښې

ښه هغه چې بې توښې مسافرت کا
کم قبول چې د يارانو نصيحت کا

زړه روښانه د هغه په سوي آه کړه
ورك د سلو کالو غم په يو ساعت کا

## د حق په حضور کښې

### (1)

يو بې ورو زموږ بې دلو زړونه لاړو
د لمبې غوندي مړۀ سوي خونه لاړو

راشه يو لحظه په عامو کښې ورګډ شه
چې خاصانو کړو خالي جامونه لاړو

چې خبري مې د نشت او شته کېدلې
ما له شرمه شونډې کمې پرانستلې

د ژوندو سرو سجده که پېژنداى شي
له سجدې به مې انداز د کار اخلې

%%%

زما زړه په کشالو د جهان بند دی
د هغه نظر پروینو نه بلند دی

په دوزخ کښې یوه ورانه ګوشه ورکړه
دا کافر د حد نه زیات خلوت پسند دی

%%%

دا څه شور دی چې راځي له آب و ګله
عشق ته پیښ شول د یو زړهٔ نه سل مشکله

قراری د یو نفس په ما حرام دی
رحم بویه سریکار مې دی له دله

دا جهان له ځانه چا دی را ويستلې
بيا له چا جلوې يې حسن ځولې

ما ته وايې چي ځان ژغوره له شيطانه
راته وايه چي هغه دی چا روزلی

**(2)**

دا زما آزاد زړګی په پيچ و تاب دی
چي په برخه مي عتاب دی که خطاب دی؟

نه شم زړه د ابليس هم آزارولی
په دې يو نيمه ګناه کښې مي ثواب دی

%%%%

اُم عمروا! وار دی واړوو په بله
تا د ښی ډډې سرې کړل محروم څله؟

دا که رسم د دوستۍ وي نو دا جام او
صراحي دی د حرم په ديوال وله

"ځان ليدونکيِ" په خپل زړه کښې بنديوان دي
همه درد دي خو ناخوښی په درمان دي

ته له ما څه سجده غواړې چې شاهان خو
له غه کليو خراج نه غواړي چې وران دي

%%%

ځم په داسي لار چې نه لري منزل
کرم تخم چې يې هيڅ نشته حاصل

له غمونو مي ډار نه کيږي خو ګوره
هغه غم نه چې د زړه نه وي قابل

%%%

زما مى د دې تنګجامو نه ساته
دا پاخه شراب د خامو نه ساته

لري ښې د اور سپرغۍ دي له نيستانه
د خاصانو شی د عامو نه ساته

په طلب کښې نشته ستا دا کړاوونه
نه دا داغ او نه دا سوی او نه دردونه

هم په دې له لامکان وتښتېدمه
هلته نشته دا د نيمي شپې آهونه

%%%

هنګامه ورکړه زما نه دې جهان ته
نوی رن-ګ ورکړه دې مځکې دې آسمان ته

بل آدم زما د خاورو نه پيدا کړه
مرګی ورکړه دې غلام د سود او زيان ته

%%%

جهان لا ډېر د تيرو دی په آفتاب
هو صواب يې سراسر دی نا صواب

چې دې خاورې ته ترڅو به ورکوې ته
د آدم د پاکې وينې رن-ګ و آب

%%%

زه غلام یمه غلام ستا د رضا یم
ځان به بې ستا له ښودلې لار نه بیا یم

ولې ته که ما ناپوهه ته اووایې
چې ته خر ته تازي اووایه نه وایم

**(3)**

په سینه کښې زړه لرم خو بې سرور دی
لپه خاورو کښې مې سوی شته دی نه نور دی

را نه وایې خله، چې بار دی پر ما باندې
دا ثواب زما د مونځ چې بې حضور دی

%%%

څه قصه به کړم د دین او د وطن
چې په جار کولای نه شم دا سخن

چې خفه نه شې هم ستا د بې مهرۍ نه
درمسال مې پخوانۍ کړو بیا مسکن

%%%

نن په بند كښېږ د فرنګ چي مسلمان دى
د خپل زړه تر لاس كولو يې كار ګران دى

چي د غير په در وي ټيټ هغه تندي كښېږ
سجود چرته د بوذرؓ او د سلمانؓ دى

%%%

زه خواهش د هغه، نه د دې جهان كړم
دا مي بس ده چي دى پوى په راز د ځان كړم

يو سجده را چي له سوز او له مستۍ يې
په ګډا باندي سر مځكه او آسمان كړم

%%%

وايه څه غوارې له داسي تن آسايه
چي كوم باد راغلو اوچت يې كړم له ځايه

نن سحر مي په سجده كښېږ "جاوېد" اوليد
په سحر يې كړه ماښام زما زېبا يه

%%%

**(4)**

هغه قام ته درنه غوارم فراخي
چي بې سپور او بې يقينه دى فقهي

ما دا څومره ناشوني اوليدلي
دريغه نه واى زيږيدلى، الٰهي!

%%%

ستا نظر عتاب آلود به وي ترڅو
دا بتان حاضر موجود به وي ترڅو

د خليل اولاد په دغه بتخانه کښې
نمك خورده د نمرود به وي ترڅو

%%%

هغه تېر سرور به بيا راځي كه نه؟
چي نسيم به د بطحا راځي كه نه؟

بس تر سره شو ژوندون د دې فقير
چي به بل د راز دانا راځي كه نه؟

%%%

که چري هغه دانا رائي د راز
ورته اورسوه دا سوی آواز

چي ضمير د امتونو پاکوونکی
یا کلیم وي یا حکیم وي نی نواز

%%%

ټول دولت مي یو زړګی دی درد آشنا
په قسمت مي یو فریاد دی نارسا

رېدي ګل ولاړ زما په ځلي ښه دی
چي هم چپ دی هم د وینو په ژړا

**(5)**

هیڅ خبر نه دی د چا د زړه په ورڼه
نه سینه کښې د غمونو په پالنه

ما خپل روح په هغه خاورو کښې "پو" کړئ
چي يې نه زده بې خوړنې بې مردنه

%%%

زړه زما دی له کوګله تبنتېدلی
شته ظاهر خو د معنو نه دی نتلی

بنه له ما دی د درګاه هغه رټلی
چي يې حق ليدلی، ما دی اورېدلی

%%%

جبرائيل دی څه خبر د ها و هو نه
بيا خبر څه دی مقام د جستجو نه

کړه تپوس د خوار بنده نه چي خبر دی
د خوږو او د ترخو د آرزو نه

%%%

شپه د دغه انجمن مي بنايسته کړه
لکه مهه مي په ګردش ويلي تنه کړه

قصه ستا د تغافل او بې نيازئ وه
خو له مينځه نه يې ما "سپکه پښه" کړه

%%%

داسي دور به فلك نه وي ليدلى
چي يې زړه د جبرائيل هم وي ربېلى

څنګه ښکلى دير يې جوړ کړو چي مومن د
عبادت ځنې کافر دى زېږېدلى

**(6)**

کړه عطا سوز د خسرو شور د رومي رح
راکړه صدق او اخلاص د سنائي رح

بندګي کښې دى دا هسي يم خوښ شوى
وا به نه خلم که را اوبخښې خدائي

**(7)**

فاقه مست او کند اغوستى مسلمان دى
جبرائيل يې له کارونو پرېشان دى

راشه نقش د يو بل ملت بنا کړه
دا خو پېټى پر اوږو د دې جهان دى

%%%

بل ملت چي کار ته مخه کاندي کار کا
بل ملت چي له تراخو خوارږه اظهار کا

چي په دې يوه وينا نه راضي کيږي
دوه عالمه پاس په خپلې اوږه بار کا

%%%

هغه قام چي لاالٰه ورد د زبان کا
نيمي شپې نه را پيدا سحر خندان کا

لمر وي پوهه په منزل د دهٔ د لاري
شګې ريګ ترې نه جارو د کهکشان کا

**(8)**

دی په واک د څو نامردو ستا جهان
دي کسان يې د ناکسو بنديوان

هنرمند يې په کارګو کښې خوري ځانونه
چي يې عيش په غوښو اوکړي څو ګنجيان

%%%

پير ته داسي يو مريد فاقه مست اووې
چي لوی خدای زما له حاله خبر څه دی

د شارګ　　نه هم نزدې دی هغه موړ ته
خو د ګېډې نه ډېر موړ ته نزدې نه دی

**(9)**

په بل ډول دا وطن د هندوستان دی
په بل طور يې هم مځکه هم آسمان دی

ته پنځه وخته لمونځ مه غواړه له ما نه
د مريو د صف کېدلو کار خو ګران دی

%%%

چي محکوم شو خود فروشه مسلمان دی
په جادو کښې ګير د ګوش او د چشمان دی

پلسې مو سستې محکومی کړلې دا هسي
يو دروند پېټی راته دين، آئين، قرآن دی

**(10)**

لړه وکړه اندازه د سود او زیان
د جنت غوندي همېش کړه دا جهان

ګورې نه چي موږ له خاوري زېږېدلیو
څومره ښکلی ښایسته کړ دا خاکدان

%%%

ته خو پوه یې چي ژوندون جاودان څه دی
خو پوه نه یې چي مرګی ناګهان څه دی

ستا اوقات به پرې یوه لحظه کم نه شي
که زه هم شم جاودانه، نقصان څه دی؟

**(11)**

آخیر عمر چي د دې بوډا جهان شي
پټ تقدیر به هم چي کوم یو وي عیان شي

ما چي خپل ښکلی بادارυ ته رسوا نه کړې
د هغوی نه دي حساب زما پنهان شي

%%%

تن ضعيف خو روح زما دی په رفتار
هغه ښار ته چي بطحا يې ده په لار

ته هم دلته د خاصانو سره عيش کړه
زه روان يم تر منزل د ښکلي يار

## د رسالت په حضور کښې

نازک له عرشه ځای د ادب لاندي تر فلک شته
ساه ورکی شي جنيدτ او بايزيدτ چي دلته راشي
((عزت بخاري))

## د رسالت په حضور کښې

(1)

"اې خېمه کښې ناسته له خېمې نه شه بهر
پورته کاروانيان شو او را مخکښې شو رهبر✉"

عقل کجاوه په مخکښې نه بوزي عاجز شو
اوس مي قيزې خپلي کړې د زړه په لاس کښې ور

✉ دا د منو چهري شعر دی

%%%

ما په نظرونو کښې ساته جوهر د زړه
سومه یشیدم پړقیدم لر و بر د زړه

اوتښتیدم زه د کلي ښار له هواګانو
پرا مي نستو باد د بادیې ته ور د زړه

%%%

خدای خبر د چا جلوې شهید کړلو دا خوار
نه مي شته د زړه نصیب کښې یو لحظه قرار

بو مي تلو صحرا ته هلته لا زیاتي غمژن شو
لاړو د چینې په خوا کښې اوژړیدو زار

%%%

مه کوه تپوس د جلوه مستو د کاروان
لاس یې دی اخستی له اسبابه د جهان

زړه یې د جرس د آوازونو هسي شور کړي
ګویا کښې چپې دي د نسیم چي نیستان!

%%%

ما په بوډا ځان د یثرب لاره وه نیولې
مستې نغمې وایم د مزې عاشقانه

څنګه چې مرغان د بادیې وختې ماښام
الوزي د ونو سر کښې ګوري آشیانه

%%%

**(2)**

عام يې ګناهونه کړو د میني مستۍ عام
کړو يې هر دليل د پختګانو راته خام

زه په حجازي آهنګ کښې خپلې نغمې وايم
"هغه چي ورومبۍ قطره يې ګډه کړه په جام"
څه تپوس کوې له مقاماتو د نوا
کم خلګ خبر دي چي څه وايمه له چا؟

خپل اسباب مي خور کړلو په دې خوره بېديا کښې
ځان ته چي خلوت کښې خپله يم نغمه سرا

**(3)**

اوښې ته مي وې سحر چي رو رو قدم واخله
سور دي خوار خسته دی او کمزوری او بوډا

داسي مستانه قدم يې واخست ته به وايې
چا ورته رېښم دي غوړولي په صحرا

%%%

پرې يې بِږده مهار ساروانه! بې مهاره ښه ده
دا هم په زړګي زما او تا غوندي بينا ده

زه يې د قدم د دې څپو نه معلومومه
دا لکه زما د زړۀ جادو کښې مبتلا ده

%%%

توري سترګي يې ډکي دي د اوښکو له قطرو
زړه مي سوزوي د نيمې شپې په اسويلو

هغه سرۀ شراب چي زما زړه يې سره لمبه کړو
دا راووروي د نظرونو له څپو

**(4)**

سخ د هغه چولي چي په هغه کښې کاروانونه
اولي کجاوې په مخه وايي درودونه

بږدي سر په سجده چي د هغه په ګرمه شګه
سيزي پرې تندی څو چي پرې جوړ شي محرابونه

%%%

څنګه ښه صحرا ده، هر ماښام یې سحر خند دی
شپه ده پکښې لنډه ورځ اوږده څومره یې خوند دی

پام کوم قدم پرې باندې رو ږده لارویه!
دلته هر بڅری لکه زړه، هسې دردمند دی

**(5)**

دا عجمي څوك دی؟ چې امیر دی د کاروان
نه لري آهنګ یې د سرود عربې شان

داسې نغمه کاندې چې د هغې له مږښته
یخ ټتر به اوپاږي انسان په بیابان

%%%

ځای یې د منزل عشق او مستې ده چې په تلهٔ دی
ګوره څومره اور په آب و ګل کښې د هغه دی

سمه د هر چا د زړه سره د ده نوا ده
ځکه چې په هر ګوګل کښې ټوك د ده له زړه دی

**(6)**

غم زما چي پټ دی بې وینا نه هم عیان دی
دا که چړي را مي شي پر ژبه، یو داستان دی

لاره تاؤ را تاؤ ده لاروی بې دمه ستړی
مړه یې ده ډیوه په مخکښې شپه ده حق حیران دی

%%%

پورته کړل سپرلي ګل لاله په بیابان
ښخې شوې خېمې په صحرا، جمع شو یاران

زه چي ځان ته ناست یمه بس خوښ یمه په دې کښې
ښه د ولې غاړه چي راځي له کوهستان

**(7)**

کله مي اشعار د عراقي شي پر زبان
کله د جامي وینا مي اور بل کړي په ځان

څو که د عربو له آهنګه خبر نه یم
بیا هم زهٔ شریک یم په نغمه کښې د ساروان

غم د لاروي سره خوښي کړه ګډه ډېره
چيغه د فرياد يې د جنون نه کړه ور تېره

واوره اې ساروانه! په اوږده لاره روان شه
سوی د جدايي مي لا سيوا کړه را برسېره

**(8)**

راشه ياره! موږ چي سره وژاړو زار زار
دواړه يو وژلي يو جلوې د يوۀ يار

راشه چي دوه دوه د زړۀ خبري سره اوکړو
اوښنو بيا سترګي په پښنو باندي د بادارρ

%%%

کمه مقرر د حکيمانو شوه بها
کړه يې و نادان ته مستانه جلوه عطا

ځومره خوښ بختي ده، څنګه ښکلي زندګي ده
کړه يې يو درويش ته دروازه د سلطان وا!

%%%

دا همه جهان مي دی د تن په لر او بر کښې
شته دی هم هوا د لا مکان زما په سر کښې

زه چي کوم ساعت د دغه لوړه بامه تېر شوم
پرېوت لکه ګرد چي مي الوت ؤ په وزر کښې

%%%

ښکاري دې کشتۍ کښې زمانې جاوداني
خېژي يې له خاورو بې صورته معاني

دلته خوا په خوا دي حکيمان او کليمان
ځکه چي څوک نه وايي ببخي "لن تراني"

**(9)**

هغه مسلمان چي دی فقير خو کجکلاه
ووځي د سينې نه يې هر دم چي سوی آه

ژاړي يې زړګی خو نه وي پوی چي ولې ژاړي؟
يا رسول اللهρ يوه نګاه يوه نګاه!

%%%

تاۋ زما په زړه کښې دی د تا د سوز له غمه
دا زما نوا خو یو تاثیر دی ستا له دمه

ژاړمه په دې چې په وطن د هندوستان کښې
وه مي نه لید داسي بنده ستا چې وي محرمه

%%%

شپې لره د هند د غلامانو سحر نشته
لمر دپاره نشته په دې لاره گذر نشته

وکړه لږ په موږ باندي نظر چې په مشرق کښې
بل مسلمان داسي بې اسرې او کمتر نشته

%%%

څه به درته وایم له هغه فقیر دردمنده
هغه مسلمان چې دی په خټه ارجمنده

پاک پروردگار د دې سخت جانه ساتندوی شه
ښکته را پرېوتی دی له لوی بامه بلنده

%%%

حال يې درته زه څرنګه ووايم په خولهٔ
تا ته خو څرګند زما ظاهر دی هم مې زړهٔ

بس دغه روداد يې دی د دوو سوو کالونو
زړهٔ لکه کنده د يو قصاب لرمه زهٔ

%%%

لا خو دا فلك په کاږه ډول په خرام دی
ځکه دا کاروان لا لري لري له مقام دی

حال به د دې قام د بې نظمۍ درته څه وايم
ته پخپله وينې دا ملت چې بې امام دی

%%%

وينه کښې ګرمي هغه روميې يې نه ښکارېږي
ځکه يې په شړو کښې لاله نه زرغونيږي

تش د توري تيکې يې په شاني د کيڅۍ دی
طاخ کښې د وران کور يې کتاب ايښې دی زړېږي

%%%

خپل زړهٔ چې هغه په رنګ او بوی کښې ګرفتار کړ
تش د ذوق او شوق نه د آرزو يې په يو وار کړ

ځکه پيږندای نه شي اوس بڼغ د شابازانو
غوړ چې اموخته يې خپل د ماشي په بنګار کړ

%%%

بېرته و هغه ته دروازه نه شوه د زړه
وه پکښې خودي خو پيدا شوې وای له څه

بڼغ نه د تکبير يې که ضمير ګوري تش پروت دی
ځکه د هغه حرم د ذکر ولوېده

%%%

څيري ګرېوان، ژوند يې بې د فکر له ګنډو نه
خدای زده بې ارمانه به څه واخلي له ژوندو نه

مرګ يې په نصيب کښې دی، يو سوړ نيمګړی مرګ
هغه مسلمان چې کوي ژوند بې الله هو نه

%%%

حق هغه ته ورکړه چې مسکين دی او اسير دی
مرګ يې غيرت زر نه قبلوي څو که فقير دی

ور د ميخانې يې دی هغه ته پوري کړی
مړ مسلمان دې ملک کښې د تندي نه زهير دی

%%%

يو ځل يې بيا هغه خاوره ختِه کړه سپيڅلې
جوړه يې دنيا کړه بيا په زړه کښې ځلېدلې

تېزه ده هوا، د ده لمن لکه غلبيل ده
غم يې د ډيوې کوه سلګيو ده نيولې

%%%

غير يې په خلوت کښې دی د ژوند ناوې سنباله
سيل يې په مقام کښې د نېستۍ له بده حاله

دا ګنهګار ښخ قبر کښې پروت دی بې له مرګه
دې نکير منکير يې له ګرجې او درمساله

%%%

نه ښكاري هغه ته، څنګه نور، چرته سرور دى
نه يې په ګوګل كښې هغه زړۀ، چې ناصبور دى

خداى دي د هغه امت ملګرى او ياور شي
مرګ يې چې د دې نه دى چې زړه يې بې حضور دى

%%%

كول د مسلمان او بيا له مرګه نا محرمه
ويري نه د مرګ په رپندي د مرګ تر دمه؟

ما يې په ټوكر سينه كښې زړۀ ونه ليد
ساه يې لنډه ګنډه او لړزان د مرګ له غمه

%%%

دا ملوكيت دى سراسر ښيبنه بازي
نه دى ترې په امن كښې رومي نه حجازي

غم بيانومه د يارانو ستا حضور كښې
ځكه چې په داسي وخت كښې شي دلنوازي

%%%

تن د مسلمان راته معلوم دی پایدار دی
خته یې مضبوطه ده کالبوت یې استوار دی

داسي یې د سترګو نه هوښیار طبیب ته ښکاري
روح یې د خودۍ تن کښې کمزوری رعشه دار دی

%%%

تیټ لیمهٔ مسلم دی هم له دې چي بې کلاه دی
دین یې مړ او فقر یې عبارت له خانقاه دی

پوه یې چي زموږه میراث څه دی په دنیا کښې
کند خو داسي کند چي له اسبابه د بادشاه دی

%%%

څه به یې تپوس را نه کوې چي په څه شان دی
مځکه یې بې خونده لکه څنګه یې آسمان دی

اوس هغه مارغه ته، چي ساته دی په اینځرو
ځان له د یوې دانې لټون په صحرا ګران دی

%%%

ځلنده ښکاره مي کړه هغه ته زندګي
راز مي د "صبا" کړو او د "نن" ورته جلي

ويلي شي د روح اسرار د دې نه زيات په سپينه
دې عجم ته ورکړې که ته نطق عربي

%%%

هر څو مسلمان که بې لښکره بې سپاه دی
اوګوره ضمير يې چې ضمير د يو بادشاه دی

بيا که خپل مقام ورته عطا دويم کرت شي
شته دی په جمال کښې يې جلال چې بې پناه دی

%%%

وې زړې قصې همه د شيخ چې خزانه وه
کوم يې چې کلام ؤ نو ګمان او افسانه وه

لا خو يې تر اوسه دی اسلام زنار تر غاړه
دا به يې بامبړ ؤ دا حرم چې بت خانه وه

%%%

ځنګه په بل طور لا ديني دغه جهان کړو
روح يې د آثارو د بدن څنې بيان کړو

بس له هغه فقره چې عطا دی وه صديقτ ته
ښه به وي که دا مين په تن دی په سوران کړو

%%%

رن‌ګ او بوی حرم، له درمسال اخلي عيان دی
بت زمونږ سپين بږيری پرېشان وېښته حيران دی

نه مومي زمونږ د تور بختانو په ګوګل کښې
هغه زړه روښان چې په انوارو د ارمان دی

%%%

كله په مسجد کښې صف په صف چې فقيران شول
ټول شهنشاهان د دوی له لاس څيري ګرېوان شول

مړ چې هغه اور شو چې يې بل ؤ په سينو کښې
بيا په دربارونو کښې راښکي مسلمانان شول

%%%

نن مسلمانان دي پخپل منځ کښې جنګېدلي
ټولو د دوی نقشونه زړونو کښې ساتلي

ژاړي كه څوك خبنته ټبنتوي له جماعته
خپله هم له هغه جماعته ټبنتېدلي

%%%

موړه چي شو خوښ په سجده بل ته بې الله نه
شو لكه د ګبر بي دربار كښې نغمه خوانه

وژاړم د چا نه له خپل ځانه ګیله من یم
ځکه چي موړ خپله قابل نه وو ستا له شانه

%%%

ټش چي نن په لاس د میکشانو کښې اياغ دی
ځکه چي ساقي مو په محفل کښې په فراغ دی

زه د دغې آه ساتنه کړمه په سینه کښې
ځکه چي لرګی يې له هغې روښن څراغ دی

%%%

تشې صراحۍ دي د خانقاه له میو باري
هم روان مکتب دی دویم ځل په تللي لاري

لاړمه خفه د شاعرانو له مجلسه
مړې نغمې بې ووځي د شپېلۍ نه خواري- زاري

%%%

زه په هر وطن کښې مسافر یم مسلمان یم
کار مي د دې خاوري په دنیا نشته روان یم

یم په پېچ و تاب کښې که هر څو یم بې طاقته
ځکه چي مخ شوی غیرالله سره په ځان یم

%%%

ستا راکړي پر چي وو په هغې الوتمه
زه خپلو نغمو کښې سوځېدمه پرېږدمه

هغه مسلمان چي مرګ ترې ویره کړې رپېږي
چرته مي او نه لید په جهان و ګرزېدمه

%%%

خدای ته یوه شپه داسي په زار وژړېدمه
ولې خوار و زار دي په دنیا مسلمانان

بېرته آواز راغلو چي خبر نه يې؟ دا قوم
زړونه خو لري، زړونو كښې نه لري جانان

%%%

نه وايم زما هغه دبدب جلال چي تېر شو
سود یې شرح اوس نه لري هغه حال چي تېر شو

مړه شوه دوه صدۍ كښې، وه ډيوه چي مي سينه كښې
وار د تيرو راغلو خود هغه جمال چي تېر شو

%%%

كړو چي حفاظت يې د حرم معمار د دير دی
مړ يې دی يقين، او هم نظر يې اوس په غير دی

بنه يې د انداز نه د نظر معلومېدای شي
سګت ترې نااميده دی، اسباب چي كوم د خير دی

%%%

لږ خو له دې سوزه د فقير چې ره نشين دی
ورکړه ورله ته هغه ضمير چې آتشين دی

زرۀ يې کړه روښانه هم رڼا يې پائېدونکې
ته له هغه آسه، چې زېږون يې له يقين دی

%%%

پرېوزم کله کله ستا نه شمه په غورځنګ
څنګه تويوم وينه بې توري بې تفنګ

اوکړه يو نظر د التفات د بام له سره
ځکه چې يم خپلې زمانې سره په جن-ګ

%%%

ما لره ګوشه يوازې ځان آه و ناله ښه
ځم چې مدينې ته بې کاروانه بې جوپه ښه

چرته مدرسه، چرته د شوق ميخانه وايه
ما لره به دا وي که د هر څه نه هغه ښه؟

%%%

زه يې په خوره خوره فضا کښې والوتم
پر مي شو لانده د بارانې وريځ په نم

ما چې تمامي حرم را غونډ کړو په ضمير کښې
و مي وې هغه چې ؤ ضمير کښې د حرم

%%%

هيڅا مي غوږ کښېنه شو په راز او په بيان
نه مي چا په ښاخ کړه خرما خوښه، نه په خوان

اې د امتونو مشره! داد دې تا نه غوارم
دې يارانو وشمېرلم زۀ يو غزلخوان

%%%

شعر نه ما خپله رضا پوري تړلې
غوټه مي د تار د معانې ده پرانستلې

تش په دې اميد چې که اکسير يې عاشقي کا
مس ځکه د دغه مفلسانو مي کړو ولې

%%%

تا وې چې وينا کړه له ژونده د دوام
غوږ وته د مړي رسوه د ژوند پيغام

دا ناحق شناس ګوره چې څه غواړي زما نه
زه د مرګ تاريخ د يو او بل چې کړم ارقام

%%%

مخ شولو زما له پټه درده زعفراني
وينه زما څاڅي له ليمو ارغواني

غوټه مي خبره په مرۍ کښې شوه چې راغله
تا ته بې وينا مي ښکاره حال دی نهاني

%%%

ژبه چې زموږ د غريبانو ده، نګاه ده
وي چې د خوږمن خبره اوښکي دي يا آه ده

سترګي مي پرانستې دي او شونډي مي ګنډلې
ځکه چې په خوله وايه، زموږ په نزد ګناه ده

%%%

ځان نه مي خبر کړو له خپل ځانه نا محرم
ومي را سپړدو د ده په ختېه کښې زمزم

هغه ګرمه ناله راکړه چې په تاؤ يې
اوسوزوم بې د دين له غمه هر يو غم

%%%

بل څه مي ګوګل کښې بې لوګي د نفس نشته
بې د تا د لاسه زما بل دسترس نشته

بيا دا د غمونو قصې ووايمه چا ته
ننه په سينو کښې چې بې تا نه بل کس نشته

%%%

دا خوار دردېدلى مسافر شيرين صدا
دا چې سوزوي يې پخپل تاؤ خپله نوا

ته خبر يې څه لټوي؟ څه ګوري؟ څه غواړي؟
زړه چې وي له دواړو جهانونو بې پروا

%%%

نم او رنګ به هیچیري او نه غوارم له باده
یم چي زه شتمن د تا دي لمر د فیض له داده

پورته مي نظر ځي له سپوږمۍ او له پرېوونو
نه کړمه لحاظ د چا خبره کړم آزاده

%%%

هغه سمندر کښې چي يې هيڅ غاړه ګودر نشته
بل د عاشقانو بې د خپل زړه نه رهبر نشته

تا وې ځکه لاره د بطحا مي اونيوله
او ګني بې تا نه مي بل خوا ته سفر نشته

%%%

مه شړه له دره مي، مشتاق ستا د حضور يم
ستا راکړی درد دی ستا له درده ناصبور يم

وه فرمايه ما ته څه چي وايې بې له صبره
ځکه چي زه دوه سوه فرسنګه له دې دور يم

%%%

زړه مي د فرنګ په ښايستاؤ او بايللو
تاؤ د بتخانې د ښکليو ويلي ويلي کړلو

زه له خپله ځانه تر دې حده بېګانه وم
خپل ځان مي چي اوليدلو نه مي پېژندلو

%%%

ما پياله د ميو د مغرب چي اونوشله
درد د سر مي واخست، پخپل سر قسم پخپله

کښېناستمه خوا کښې د نيکانو فيرنګيانو
ما هسي بې سوزه بله ورځ او نه ليدله

%%%

زه فقير چي څه غوارمه، غوارم يې له تا نه
اوريږه په پاڼه د وښو مي زړه د غر

راکړل، خوږ د سر راته سبق د حکيمانو
ځکه چي زه لوی په ترتيب يم د نظر

%%%

زه نه د صوفي خوا کښېم کښېنم نه د ملا
ته خو ښه پوهېږې چي نه هغه يم نه دا

اوليکه الله زما د زړه پر تخته باندي
هم به ځان څرګند اووينم هم هغه صفا

%%%

زړه د ملا تش دی په زړګي کښې يې غم نشته
اوچ نظر يې ستړګو کښې غړيږي خو غم نشته

ځکه زه د ده له مدرسې اوتښتېدلم
نشته دی د ده د حجاز ريګ کښې زمزم نشته

%%%

ناست چي پر ممبر وي هر کلام يې لشه دار دی
ځکه در څخه د کتابونو يو انبار دی

ما له شرمه هيڅ اونه ويل ستا په حضور کښې
دی له ځانه پټ دی او موږ ټولو ته اشکار دی

%%%

زړه له خاوندانو د زړه، ده که ما وکښلې؟
بیا خبر د شوق ورله، ده که ما راوړلې؟

موږه یو دوه غشي په ترکش د دین کښې دواړه
مینځ د ګل زیړي اووایه، ده، که ما ویشتلې؟

%%%

زه په خپل محفل کښې مسافر او بې نوا یم
اووایه دا خپلې ګرانې سختي چا ته وایم

ویره مي له دې ده چې پټ راز به مي څرګند شي
خپل زړه ته هم ځکه خپل غمونه نه ورښایم

%%%

خپل د زړه اختیار مي چاته ور نه کړو هیڅکله
ما د هر مشکل غوټه پخپله پرانستله

یو کرت که ما په چا تکیه اوکړه بې خدایه
پرېوتمه زه له خپل مقامه سل سل ځله

%%%

شته لا هغه سوی د لېونتوب زما په سر کښې
لا زما وجود دی هم په هغه شور و شر کښې

لا خو د طوفان د هغه زور نه چي تېر شوی
نشته قراری مي په موجونو د ګوهر کښې

%%%

لا په دغه خاوره کښې دننه پټ شرر شته
لا مي په سينه کښې اسوېلی د لوی سحر شته

اوکړه تجلي زما په سترګو چي ووينې
څو که زړ بوډی ده خو طاقت مي د نظر شته

%%%

دا چي زه څه وينم ترې نظر مي بې نیاز دی
زړه زما له خپله پټه سوزه په ګداز دی

زه او دا بې سوزه، بې اخلاصه زمانه څه؟
دا خو راته ووايه آخر چي دا څه راز دی؟

%%%

زه يې په بې سوزه زمانه کښې آفريده کړم
ډک له شوره روح يې، زه له خاورو د ميده کړم

ژوند يې هسي راکړو لکه بياسته مي په څټ کښې
ته به داسي واېې چي په دار يې کشيده کړم

%%%

رن‌ګ او بوی مي ګل او لاله نه اخلي هيڅ شان
لاړو مړ زما شو په ګوګل کښې پټ ارمان

پټ غم مي وينا کښې نه ځايېږي او که ځای شي
اووايمه څه؟ او چا ته يې اوکړمه بيان

%%%

د خاته تر پرېواته زه خوار او غريب يمه
ځکه بې نصيبه چي له هغو يارانو يمه

خپل غمونه خپل زړه سره وايم ځان ته ناست يم
څه معصومانه مسافري غلطومه

%%%

مات مي د حاضر علم جادو كړو په يو وار
پورته مي دانه كړه جال مي مات كړو تار په تار

خداى ته ده معلومه چي په څير د ابراهيمυ
څنګه بې پرواه يې ور درون شومه په نار

%%%

سترګو كښې زما چي دا نګاه ده دا له تا ده
دا رن‍ګ چي ځلا د لاالٰه ده دا له تا ده

مخ مي كړه سحر د من رآني* سره هم ته
شپه مي چي سپوږمۍ غوندي رڼا ده دا له تا ده

%%%

خپله چي ما اوكړه د خپل ځان سره قربت
ستا په نور مي وليد خپل مقام هغه ساعت

جوړ مي د نوا نه د سحر كړو په دې دير كښې
څه ښكلى جهان يو د مستۍ او محبت

* من رآني" تلميح ده د مشهور حديث: من رآني فقد رآالله. يعني چا چي زه وليدم هغه خداى وليد.

%%%

شته په دې دنيا کښې يو جنت چې ښه خرم دی
ګرځي په هر ښاخ کښې يې زما د وينو نم دی

لا خو های و هوی د هغه نشته په نصيب کښې
څوک چې لا تراوسه منتظر د يو آدم دی

%%%

داسي يو زلمی ورله ورکړه چې پاکباز وي
مست په هغو ميو وي چې کوم يې خانه ساز وي

متې يې مضبوطې وي په شاني د حيدرؓ
زړه يې له دوارو جهانونو بې نياز وي

%%%

جام کړه ساقي پورته راشه زړه کړه زما ښاد
سوز د ميو زيات کړه د شپېلۍ د سوز په داد

بيا مي په سينه کښې هغه زړه کښېږده را پاڅه
تاؤ چې کړم پنجه زه د کاؤس او کيقباد

%%%

دا جهان له میني مینه ده ستا له سینې نه
دې سرور بې ستا د زړو میو د چینې نه

بې له دې په حال د جبرائیل څه خبر نه یم
دا چې یو جوهر دی هغه ستا د آئینې نه

%%%

سوز چې کوم زما دی هغه فیض دی ستا له دمه
کور کښې مي چینې د میو دي ستا له زمزمه

ملك د جم زما د درویشۍ ځنې خجل دی
ځکه چې آشنا دی زړه زما ستا له حرمه

%%%

کم مي په دې دیر کښې د زړه بل پوري تړون دی
بیا سره د دې هم دا خپل مقام نه ستون دی

غوارې نن زما ځنې سجده چې ورته اوکړم
هغه خدای هم هغه چې مات کړې مې پرون دی

%%%

داسي لاله پورته شه زما له موټي خاورو
وينه يې قطره قطره څڅومه د لېمه نه

دا دلنوازي ده، که هم دا سوغات قبول کړې
زه خو نور څه نه لرمه، بې د يوه زړه نه

%%%

دې ښکلي ملت په مخکښې زه اوسوځېدمه
جوړه کړله ما يوه نوا چې وئېدمه

وايي دا ادب چې کړه خبره مختصره
وترهېدم، روغه مې کړه، بيا په آرام شومه

%%%

ستا قسم د رندو په سپېڅلي طبعيت
ستا قسم زما په اسويلو د محبت

راوله وريځ د پسرلي په هغو خاورو
غېږه کښې زما دانه را نيسي په الفت

%%%

زړه لرم ورغوي کښې، دلبر او جانان نشته
ډېر لرم سامان خو چرته غل د سامان نشته

اونيسه مقام مي په سينه کښې راشه راشه
ما غوندي دنيا کښې يک تنها مسلمان نشته

%%%

ما ورکړو حرم کښې د رومي غوندي اذان
زړه مي له هغه د روح رازونه کړل په ځان

دور د فتنه کښې دی د تيري زمانې ؤ
دور د فتنه کښې يمه زه، د دې زمان

%%%

خاورو نه زما يو ګلستان کړه را بهر
اوښکي مي په وينه د لاله کړه تر بتر

هر څو که قابل زه د عليτ د توري نه يم
تېز راکړه د توري د عليτ غوندي نظر

%%%

ناست چي پر ساحل دی مسلمان خوب ورغلی
بحر نه خجل امید له ځانه يې شلېدلی

بې له دې ځوانمرد فقیر چي درد يې دی په زړه کښې
پټ يې چي زړګی لکه غلبېل دی چا لیدلی

%%%

چا هغه ته اوویل چي بوی راځي د یار؟
ورکړلو امید ورلره چا د نوبهار؟

هغه پخوانی سوی خو د ده د آه نه لاړو
بیا د ده نیستان ته چا ورپوري کړو شرار؟

%%%

ته له خپله بحره مي چینې ته ګوهر راکړه
پنګه مي خوره په غر په سمه په صحرا کړه

تا چي ؤ راکړی دې طوفان مي زړه پرا نه نست
بل یو طوفان راکړه زیاتي شور و غوغا راکړه

%%%

وګوره جلوت مي شپېلۍ چي ږغومه
ګوره په خلوت کښې چي خپل زړه ويلي کومه

ما خپلو نيکونو نه، نکته د فقر زده کړه
ګوره له سلطانه څومره زه بې پروا شومه

%%%

وم چي په هر حال کښې خو خوشحال ومه ډېر ښه وم
ورو مي چي نقاب د هر معنیٰ له مخه زه وم

مه پوښته زما بې قراري چي په لحظه به زه
ومه د آشنا سره او بل ساعت به نه وم

%%%

زه ومه شريک په درد و غم کښې د لاله
نه وم چي مي پټ ضمير د ژوند کړلو ښکاره

خدای زده چي د ژوند نکته مي چا وته ويله
ځکه چي تنها وم او سرود مي کړو تنها

%%%

ستا په نور به ځلنده زه دا خپله نګاه کړم
ځير چي بيا پرېږ زه دننه دړ د مهر و ماه کړم

کله مسلمان چي ځان ته وايم اورپيږم
زه چي ګرانې چاري را په زړه د لااله کړم

%%%

ستا کوڅه کښې ما دپاره سوز د يو نوا بس
دغه ابتدا را لره، دغه انتها بس

ځار شم د هغه سپېڅلي رند له دې جرآته
خدای له چي يې وويل: "ما له مصطفیٰ بس"

**(12)**

زړه کړو های و هوی ما د خپل شوق له برکته
هغه چي جاري کاندي چينه له کاڼي کښته

دغه يو ارمان لرم په زړه کښې چي "جاوېد"
واخلي رن‌ګ و بوی دا ستا له عشق او محبته

%%%

وګوره لږ راشه کجکلاهه فیرنګیان
ته به واېي لمرونه یا سپوږمیاني دي په ځان

بچ يې اوساته له دې کافر نظر کوونکو
دا زما د ګرمي ګرمي وینې ساده ځوان

%%%

ورکړه لاس چي پرېوتل له لاده باده ستړي
هغو ته چي زړونه غیرالله ترې نه دي وړي
لږ د هغه اور ځنې چي بل زما په ځان دی
برخه د هغو کړه مسلمان چي دي زو کړي

**(13)**

ته هم واخله می د دوست له جامه نابلده
هغه چي دي دوست سره واصل کړي تر ابده

دا نه ده سجده، که کړم جارو عبدالعزیزه!
خاوري په بڼو د یار د درنه څه ده بده؟

%%%

شاه يې ته سلطان يې حجازي او زه فقير
يم به خو په ملك د معاني کښې يم امير

کوم جهان زرغون چې شو د لاالٰه له تخمه
راشه که يې ګورې زما غېږ کښې د ضمير

%%%

خوښ بې دارو نه دی که څو زه يم دردېلې
او نه واېې دا چې يمه خوار عمر خوړلې

لا خو د ليندو د باره ښه په کارېدای شم
غشي د ترکش نه د ملت يمه لوېدلې

%%%

راشه يو تر بله چې لاس ورکړو سره ګډ شو
هېره دا دنيا چې سراسر کړو سره ګډ شو

يو ځل په حريم کښې د کوڅې د هغه دوست
سرې اوښکې د سترګو را بهر کړو سره ګډ شو

واوره په يو داسي بيابان کښې ستا مقام دی
مخ يې د ماښام لکه سحر آئينه فام دی

چرته دي په خوښه وي خېمه اووهه کښېنه
بل چا نه طناب غوښتل په دې ځای کښې حرام دی

%%%

زه يم مسلمان، يمه آزاد له هر مکانه
زه يم ترې بهر، که وي حلقه نهه آسمانه

ما ته يې سجده هسي را زده کړه چي په هغې
زه شم پېژندی د هر يو خدای بها آسانه

%%%

بت د فيرنګي نه بېګانه اوسه هر دم
لوظ يې له بها چي د اوربښې نه دی سم

قرض نظر واخله ته له سترګو د فاروقه
دې نوې دنيا کښې بيا زړور واخله قدم

%%%

# د ملت په حضور کښې

مه غواړه زما نه ته وينا عارفانه
ځکه چې لرمه زه سرشت عاشقانه

اوس به په دې باغ کښې درته سرې د وينو اوښکې
اوشيندمه زه، لکه شبنم دانه دانه

# د ملت په حضور کښې

## (1)

خدایΨ پورې زړه وتړه پر لار د مصطفٰی ځه
پاڅه په منزل کښې د هلال غوندې صفا ځه
ورو په ورو غځېږه په فضا کښې په خلا ځه

غوارې خپل مقام که ته په دغه بتخانه کښې
خدایΨ پورې زړه وتړه پر لار د مصطفٰیρ ځه

%%%

موج غوندي پيدا يمه له خپله سمندره
ځان کښې پيچيده يم لکه وي چي مرغلره

ځکه خو نمرود راته دا هسي په غصه دی
کومه د حرم د جوړوو خواري له سره

%%%

راشه ساقي راشه په ګردش دي کړه جامونه
کړه خواره لستوني دي په دواړه جهانونه

راز د حقيقت بې ظاهر کړی په رندانو
ځکه چي ملا پيژني کم د دين رازونه

%%%

راشه ساقي راشه کړه نقاب د مخ نه لري
اوځځيږيويني مي له سترګو نه نادري

اوس په هغه غاړه، چي شرقي ده نه غربي ده
وايه د مقام د "لاتخف*" راته سندري

%%%

* د قرآن پاك د دې آيت تلميح ده: "لاتخف انك انت الاعلیٰ.

پاڅه را بهر خپلې سينې نه خپل تکبير کړه
ته پخپله خاوره باندې طرح خپل اکسير کړه

واخله خودي وېې نيسه کلکه، خوشحال ژوه
بل ته يې ور نه کړې پخپل لاس کښې دې تقدير کړه

%%%

ډک له خودۍ وي مسلمان مرد تمام دی
ورکه يې خودي که شوه د خاورو نه غلام دی

ته که دې متاع د ځان، خپل ځان ګڼې خبر شه
بې له خپله ځانه په بل چا نظر حرام دی

%%%

ښه مسلمانانو چې خپل ځان اوپېژندلو
قدر يې ګوهر غوندې هر سيند کښې اوموندلو

بيا دې بتخانه کښې که له خپلې خودۍ تېر شو
ستا په سر قسم دی چې مرګ يې واخستلو

مخ نه د تقدير هغه پرده مي راښکودله
مه شه نااميد د مصطفیٰρ په لاره زغله

ستا که پرې باور نه وي دا ما چي درته اووې
وتښته له دينه مرګ د کفر در آخله!

%%%

تُرکو ته يې پرانستل چي پوري وو درونه
جوړ يې د مصريانو ښه محکم کړه بنيادونه

ته هم د خودئ لمن په لاس اونيسه کلکه
يې له دې ورکيږي چاته دين او نه ملکونه

%%%

هر هغه يو قام چي يې برباد کړل بهارونه
ده سره جوړيږي الوتلي نکهتونه

څو که يې له خاورو ريدي ګلې را زرغون شي
خپله د قبا نه يې الوتي وي رنګونه

%%%

خدای هغه ملت په سرداریٔ اونمانځلو
چا چي خپل تقدیر پخپلو لاسو اولیکلو

هیڅ يې سریکار د هغه قامه سره نه وي
خپل ملك يې دهقان چي بل دپاره اوکرلو

%%%

زده کړه د رازي ځنې حکمت چي د قرآن دی
خپل څراغ ي-ې بل کړه له څراغه چي روښان دی

بیا سره د دې یوه نکته واوره زما نه
ژوند چي پکښې سوز او مستي نه وي هغه ګران دی

%%%

**(2)**

## خودي

چا په لاالٰه چي د خودیٔ وهلی سر دی
ده ته حاصل شوی د مړو خاورو نه نظر دی

مه پرېږده لمن د داسي ځوان چي ما ليدلی
ګيره په کمند کښې يې سپوږمۍ ده او هم لمر دی

%%%

پورته شه ناپوهه زړه آګاه اولټوه
ته خپلو نيکونو غوندي راه اولټوه

پوه يې چي څنګه مومن پټ رازونه سپړي
د لا لا موجود الاالله" اولټوه

%%%

زړه دي شته منمه خو داغ نه لري پنهان
نشته پکښې چرته خوږ او سوی د مسلمان

څه شي که چمن ته د خودۍ دي اوبه ورکړې
تا له هغه سينده چي پکښې نشته طوفان

%%%

**(3)**

# اناالحق

بې له حقΨ نه ځان ته چي حق وايي حق د چا دی؟
څوك يې چي قابل د دار اونه ګڼي خطا دی

سر وهل يې ښه دی که يو کس هسي وينا کا
دا ټکی که غږ وي د يو قام هغه روا دی

%%%

خير که اناالحق د هغه يو ملت نعره وي
نم د ده د ويني نه چي هره ونه شنه وي

پروت يې پټ دننه يو جمال وي په جلال کښې
دا نهه آسمانه هغې يو ته آئ◌ينه وي

%%%

ډېر په امتونو کښې هغه بلند مقام دی
دوارو جهانونو کښې د هر ملت امام دی

يو لحظه کښېني نه په آرام له پيدايشه
ځکه ستوماني او خوب په ده باندي حرام دی⌧

%%%

⌧ آيات پاك ته اشاره ده:- لا تاخذه سنة و لا نوم.

تن یې د لمبې غوندي له سوزه د درون دی
خس غوندي هغه ته دا جهان د چند او چون دی

شرحه یې همت د اناالحق شي بنه کولی
وه چي وایي "کن" ورپسې وګوره "یکون" دی

%%%

الوزي وسعت کښې د آسمان چي کامل تر وي
ګرځي که هر خوا پخپله ځاله یې نظر وي

ستوري او سپوږمۍ یې هغه ښتي وي کمند کښې
لاس کښې یې تقدیر د زمانې وي باندي بر وي

%%%

باغ کښې خوږ آواز کوي په شان د بلبلانو
وي چي په راغه کښې کړي غوټه د شابازانو

وي یې چي امیر په بادشاهۍ کښې فقیري کا
کار یې درویشي کښې کړي فقیر د امیرانو

%%%

ډکه له زړو شرابو نوې پیمانه کړه
لاندې تر فروغ دې غر محل او کاشانه کړه

غواړې که له ښاخه د منصور مېوه نو راشه
رونه په "لا غالب الا الله" د زړه خانه کړه

%%%

**(4)**

# صوفي او ملا

تریو راته تندی د ملا ښکاري د کړو وړونه
پوست یې نظر نه شي بېلولای د مغزو نه

هم که زما دا مسلماني وي چې یې وینې
ښه کړې که شړې مې د کعبې د دروازو نه

%%%

خلق د کعبې فیرنګي ښکار کړل هم د دیر
ږغ د خانقاهونو نه را خیژي د "لا غیر"

لارم بيا له سره مي ملا ته دا قصه کړه
وه يې کړه دعا چي "عاقبت دي وي په خير"

%%%

اې چي د صوفي او د ملا يې بنديوانه
ژوند نه اخلې ولې له حکمت ډک له قرآنه

نور دي د قرآن له آيتونو څه کار نشته
بې له دې چي ساه يې په يٰسين ورکړې آسانه

%%%

ځان ته اوېزانه آئينه کړه له قرآنه
ته يې بدل شوی غوندي اوتښته له ځانه

ته د خپل عمل دپاره تَلَه ځان ته کښېږده
بيا دي هغه تېر قيامتونه جوړ کړه ځوانه

%%%

زه سلام کوم ورته صوفي دی، که ملا
ما ته را رسولی يې پيغام د کبريا

دا ده چي تاويل يې په حيرت کښې غورزولې
پاک پروردګارΨ او جبرائيلυ او مصطفیٰρ

%%%

ذکر د دوزخ کړو يو واعظ وته کافر
دې نه زياته ښه خبره اوکړه يو کافر

هيڅ نه دی خبر هغه غلام له خپله ځانه
وايي چي دوزخ د بل په برخه دی بدتر

%%%

واوره يو مريد چي خود شناس ؤ پخته کاره
وه يې کړه يو پير ته، څه خبره لښې داره

ځان پخپله يو نيمګړي مرګ ته ورسپارل دي
رزق را غونډول د چا له خاورو له مزاره

%%%

خپل زوی ته يو پير خرقه پوش اووې برخورداره
دا نکته "تعويذ کړه د ژوندون" د ځان دپاره

تل اوسه آشنا د زمانې د نمرودانو
ژوند ابراهيمي يې بيا له فيضه ځنې شماره

**(5)**

## رومي رح

تېر تر ستونې ته هغه زاړه شراب کړه بيا
ملك چې د پروېز يې د يو جام نه ده بها

بيا دي د رومي جلال الدين په تاوده شعر
کړه د زړه کعبه کښې دېوالونه په ګډا

%%%

واخله له پيالې يې شرابونه لاله رنګه
داسي يې تاثير دی چې لعل جوړ کاندي له سنګه

هغه چې هوسۍ ته د مزري زړه ورکوينه
هغه چې د ملا داغونه وينځي له پلنګه

%%%

ما اخستيٍ برخه د هغه له تاب و تبه
شپه شوه زما ورځ، د ده د ستوري له سببه

وګوره هوسۍ ته چي په چول کښې د حرم ده
پرېښي چي خندا د امزريانو يې له لبه

%%%

وارهٔ سر تر پايه سوز د درد د آشنايي
وصل يې پوهيږي په زبان د جدايي

اخلي د شپېلۍ نه يې جمال د عاشقۍ
خپله نصيبه يې د جلال کبريايي

%%%

غوټه د مشکل، د دې ناکاره يې پرانستله
ګرد چي ؤ د لاري ترې کيميا يې جوړه کړله

عشق او د مستۍ سره آشنا هغې شپېلۍ کړم
هغه چي سپېڅلې نۍ نواز و غږوله

%%%

ور زما د زړه يې را ته بېرته هغه آن کړ
جوړ زما د خاورو څنې هغه يو جهان کړ

دا د هغه فيض ؤ چي پيدا مي اعتبار شو
ځان چي را آشنا سپوږمۍ او ستورو د آسمان کړ

%%%

خيال يې کړي د ستورو او سپوږمۍ هم نشيني
ځي نظر يې پورته د پرېوتو نه بېخي

خپل قرار زړه يوسه هغه ته يې مخکښې کېږده
وړي په يو نظر چي د پارې نه رپندي

%%%

زده کړه د رومي څنې رمزونه فقيري
هغه فقيري چي ورته سوزي اميري

و ژغوره خپل ځان د هغه فقر و درويشۍ نه
تا چي و مقام د سرکوزۍ ته رسوي

%%%

لاړ شان و شوکت د باداری چې خودي لاړه
فقر ته يې وبښيل کارونه د ګډا

ما دي راپور کړي د رومي له مستو سترګو
واړه لذتونه د مقام کبريا

%%%

تاك نه يې زما ځلند شراب او بيا وه
ځار شم ترې دامان يې چې زما پرېږ ولاړه

برخه له هغه اوره لرم چې په اول کښې
زړه کښې د روميؒ چې سنايؒي اولګاوه

%%%

**(6)**

# د فاروقτ پیغام

باده! د عرب له بیابانه څه غوټه کړه
نیل کښې د مصریانو را پیدا یوه څپه کړه

پاڅه د فاروقτ دغه پیغام یوسه فاروق ته
ځان کښې سلطاني فقیري دواړه ګډ سره کړه

%%%

تاج و تخت د فقره سره، دغه خلافت دی
سخ شه چې لرې یې بې پایانه ډېر دولت دی

دا فقر چې پرې نه بردې ځلمیه بختوره!
مړ شي بې د دې څنې ډېر ژر چې بادشاهت دی

%%%

هر کله ځوانمرد چې معرفت پیدا د ځان کا
جوړ به بیا له سره هغه تېر ښکلی جهان کا

کړي د ده طواف به په زرګونو انجمنه
هغه چې د ځان سره خلوت شي زړه روښان کا

%%%

بېرته په اخلاص د زړه او عقل هر يو ور کړه
ته حاصل د هري ميخانې له پير ساغر کړه

ځان کښې کړه پيدا هسي نياز چې زړه روښان کړي
پاکه چې لمن لرې لستوڼی خير دی تر کړه

%%%

سخ د هغه قام چې وي خپل ځان ته رسيدلی
درد نه د لټون وي بې آرامه ټپرېدلی

وي يې د آسمان لاندې برېښنا لکه د تندر
داسې لکه تېغ چې وي له ميانه را وتلی

%%%

يو ترکې مانګې ويله څه ښکلې بدله
سترګې آسماني او سره ګونه يې ځليدله

وې که چرې ګېره مې کشتۍ شي په درياب کښې
نه يم پرې رضا که بې طوفانه ووتله

%%%

واک د کل جهان زما په خټه کښې اخښلی
شان د امانت بې په تندي زما ليکلی

وګوره درون ته دي لږ ځير هغه جهان کړه
غم بې په زړه کښې د فاروقτ چې ؤ کړلی

%%%

هغه څوک چې پوی وي په اسرارو د يقين
کړي بې يو ليدونکی که لېمه بې وي دوبين

ګډه چې يو ځای کاندي رڼا د دوو شمعو
مه کړه اندېښنه د افتراق د ملک او دين

%%%

هغه مسلمان چې ځان بې تېر له امتحان کړو
جوړ د خپلې لارې د غبار نه بې آسمان کړو

و يې ساته ښه که لرې ته د شوق بخرې
لمر به درنه جوړ کاندي که ځان دي هسي شان کړو

(7)

# د عرب شاعران

پوی زما د خوا کړه سندر غاړي د عرب
ما يې بها کمه کړله لعل چي ؤ د لب

ما په هغه نور چي مي حاصل کړو له قرآنه
سپين سحر کړو جوړ د سل اتياوو کالو شب

%%%

زړونو کښې د خلګو های و هوی را پيدا ما کړو
غر محل مي شمېر د موتي خاورو په بها کړو

بحر ډک د شور سره حريف په يوه ورځ شي
هغه شور و شر چي په سينه کښې مي پيدا کړو

%%%

مه جوړوه راشه نور د ښکليو صورتونه
بې له خپل ضمير د بل نه مه اخله امدادونه

تا زما په باغ کښې پر او بال دي پيدا کړي
ورکړه مسلمان ته، کوم چې ته لرې دردونه

%%%

زړه مي شته په تن کښې او په زړه کښې مي يو غم شته
لا خو په دې وچه زړه ځانګه کښې څه نم شته

ته هغه چينه جاري د خپل هنر په دم کړه
ځان ته پټ د هر مسلمان وينه کښې زمزم شته

%%%

وي چې مسلمان بنده د خدای لري صفات
زړه د هغه راز وي د اسرارو نه د ذات

بې د حق له نوره بل په څه جمال ليدای شي
ځکه چې دی اصل کښې ضمير د کائينات

%%%

خاوره کښې يې بيا کړه پيدا هغه سوز و تاب
اوزيږي د شپې نه د هغه چې يو آفتاب

ورږغوه داسي يو نوا چې ستا له فيضه
بېرته ور عطا شي هغه ذوق د انقلاب

%%%

څه مسلماني ده؟ غم د زړه پيدا کول دي
غم کښې د يارانو د پارې په شانې سول دي

بس چې د ملت دپاره تېر شي د خپل ځانه
بيا دويم کرت "اناالملت" نعره وهل دي

%%%

هغه چې آګاه شو په اسرارو د خپل ځان
بې له خپلو سترګو په بل نه ويني جهان

جوړه په سينه کښې کړه يوه نوا دننه
بيا نو جوړولای پسرلی شې له خزان

%%%

پام ورته کوه چي ستا په ختّه کښې پراته دي
تا ته ترې حاصل مستي سرور او سوځېده دي

وينم يې خالي سبو د ده او د هغه دې
پاتې بس شراب په صراحئ کښې ستا د زړه دي

%%%

سيزي چي سينه دا شپه د دښت او د کهسار
موج شته د اوبو نه د مارغه پکښې چغار

نه روښانه کيږي په قنديل د راهبانو
ته خو ښه پوهيږې چي دی لمر ورله پکار

%%%

ښه دی دا محراب چي په تندي کښې ستا نما دی
ونيسه معلوم کړه هغه رګ چي د صبا دی

کښېږده قدم ما غوندي صحرا کښې د حرم ته
شي درته معلوم پکښې وسعت هغه چي ستا دی

**(8)**

# اې د صحرا زويه!

شول په صباؤن کښې چې روښان در او دشتونه
وکړه يو مارغه له يوې څانګې آوازونه

زويه! د صحرا پاڅه خېمه کړه خپله غونډه
ذوق چې د ټـک نه وي څه حاصل وي له ژوندونه

%%%

پاک الله عرب چې راهنما کړو د کاروان
ځکه چې د فقر يې په ځان اوکړو امتحان

فقر د هغوی که وي غيور چې غريبان وي
کړای شي، که هغوی کړي لاندي باندي ټول جهان

%%%

شور په هغو شپو کښې د سحر د بل صبا دی
هغه چې روښان په تجليو د سينا دی

تن او ځان محکم يې د دښتونو په سيلۍ
ځلك د امتونو خو د غر او د صحرا دی

%%%

**(9)**

## څه خبرې ته-----!

يو ځلي آئين بيا د تسليم او رضا واخله
لاره ته د صدق و د اخلاص او وفا واخله

مه وايه چي شعر مي "داسي دی هغسي نه دی"
راشه دا هوښيار غوندي جنون خو له ما واخله

%%%

تل پرې هغه واړه چمنونه ويرانه شي
چرته چي جنون د هنګامو نه بيګانه شي

هو! له هغه شوره چي مي ګډ کړو په دې ښار کښې
ښکاري دا جنون خو نتيجه کښې فرزانه شي

%%%

زه ړومبی لاله د پسرلي د چمن يمه
پر له پسې سوځم له دې داغ چي يې لرمه

مه ګوره په کم نظر زما و تنهايي ته
سل د ګل کاروانه د خپل ځان سره لرمه

%%%

داسي يم پرېشان لکه د لاري چي غبار شي
هغه چي د باد په اوږه سور شي په قرار شي

څومره خوشبختي به وي دا، څه خوشحال به ژوند وي
ما نه راښکاره که يو غښتلی شاه سوار شي

%%%

ښه دی هغه قام که څو پرېشانه يې روزګار وي
شي پکښې پيدا هسي ځوانمرد چي پخته کار وي

راز دی د رازونو نه د خدای دا پيدايښت يې
نه ده، چي ظاهر له هره ګرده شاهسوار وي

%%%

موج غوندي وم زه پخپل درياب کښې بې قرار
ان چي په ورو ورو شو يو طوفان را په اظهار

بل یو ښکلی رنګ بغیر د دې نه ما اونه لید
ما پخپلو وینو یې تصویر کړلو تیار

%%%

ډک شي د هغه په یو نظر سره خمونه
کور د ارمانونو کښې روان کړي شرابونه

سم د سمندر سره به دا همه لښتی کا
دی چې ورته ورکړي بې قیمته طوفانونه

%%%

هغه څوک تر لاسه چې جلب د قافلو کا
شوق به پټ اشیاوو کښې پیدا د تجلو کا

ټول داسي په ډاګه کړي وګړي د افلاکو
نهه آسمانونه جوړ پیزار د خپلو پښو کا

%%%

ورکړه هغه پاک انسان ته ته مبارکي
هغه چې سالار د قافلې و زیړوي

بیا به نو د داسي بختورې مور له غیرې
ځار به کړم، خجله به کړم حوره جنتي

%%%

زړه مي کړي سینه کښې دا وینا چي یو دلبر شته
مال دي په کاله کښې را پیدا کړه غارت ګر شته

ما ته زنکدن کښې له آسمانه صدا راغله
وو چي رژېدله شګوفه ترینه ثمر شته

%%%

**(10)**

## خلافت او بادشاهي

ځان د مصطفٰی په نور عربو اوسېځلو
مړ د مشرقیانو یې څراغ اولګولو

ورکه کړه لار هغه خلافت، چي په اول کښې
چل یې مسلمان ته د شاهۍ ور وښیلو

%%%

کاندي خلافت په مرتبه يې ګواهي
ده په ما حرامه چې هغه ده بادشاهي

مکر ورته وايي که جادو، دا بادشاهي ده
حفظ خلافت کړي د ناموسِ الٰهي

%%%

جن‌ګ چې شي پيدا د بادشاهئ او له کليمه
جن‌ګ له يو فقيره، بې کلامه، بې ګليمه

لوبي د تقدير دي داسي هم کيږي که ګورې
کله کله کار د صر صر واخلي له نسيمه

%%%

لا خو چې آدم په دې جهان کښې دی غلام دی
کار يې دی نيمګړی هم نظام يې واړه خام دی

يم غلام د فقر، د هغه شاه دارينو
هر ملوکيت چې د هغه په دين حرام دی

%%%

دی نظر د هغه چې الفت يې پائيدار دی
عشق لره، مستي لره، مسلك د ده معيار دی

ورکړای شو مقام د عبده خو که پوهيږې
بس جهان د شوق لره هم دی پروردګار دی

**(11)**

# عثماني ترك

ترك پخپل وطن کښې دا منم چې نن امير دی
زړه هم باخبر لري، په سترګو هم بصير دی

دا مکوه خيال چې د فيرنګ له بنده اووت
لا خو د جادو په زولنو کښې يې اسير دی

%%%

مات يې د دوی سحر کړو ځوانان هغه دي
زړه چې نه تړي د فيرنګانو په پيمان

مه شه ناامیده، د خپل ځان سره یار اوسه
اوس هم شته، پخوا هم ؤ، دنیا کښې ځوانمړدان

%%%

ور يې کړه ترکانو ته څه نوي ارمانونه
جوړ يې خپل کردار سره کړه نوي جهانونه

هو! خو ولې کوم داسي ستم دی چي وواېي
لري يې د مخ نه د تقدير کړه نقابونه

%%%

**(12)**

# د ملت لوڼې

پرېږده اې پېغلوکې! دا انداز د دلبرۍ
نه دي مناسبي مسلمان ته کافرۍ

زړه دي د پوډرو په بالښت مه تړه چرې
زده کړه په کاته د زړه غارتګرۍ

%%%

توره ستا نظر دی چي له خدایه دی عطا
راکړو موږ ته خدای د زړه د زخم په بها

زړه سوچه کامل خو یوړو هغې پاکې جلې
آب يې خپلې توري ته چي ورکړو د حیا

%%%

پټ ضمیر د دې زمانې نه دی په نقاب کښې
خوښ دی دنیاګۍ ته وي څرګند، په رنګ و آب کښې

زده د خدای د نور نه د جهان روښانول کړه
دې سره د سلو تجلو چي په حجاب کښې

%%%

دی چي دا جهان قایم، د میاندو برکت دی
هرڅا لره پروت يې په فطرت کښې امانت دی

هر یو هغه قام په دې نکته چي پوهه نه وي
کاروبار کچه، هم يې نظام د حکومت دی

%%%

ما له چي راکړی دا خرد پرور جنون دی
دی د مور نظر، چي پاکيزه يې اندرون دی

کله په مکتب کښې زړه او سترګې پيدا کيږي
څه ده مدرسه؟ خو يو جادو دی يو افسون دی

%%%

ښه هغه ملت دی چي د دې په پېش و تو
راشي قيامتونه د مخلوق په دنيا ګو

څه به وړپېښېږي او پخوا څه وړپېښ شوي
ځلنده ليدلی شي د مياندو په تندو

%%%

ته که نصيحت د درويش ومنې په ځان
زر قامه به مړه شي ته به نه مرې په هيڅ شان

شه لکه بتولؓ او پټ له دغي زمانې شه
پورته چي په غېږ کښې کړې شبيرؓ غوندي انسان

%%%

ته مي راپيدا کړه د ماښام ځنې سحر
وبله قرآن ته يو ځل بيا اهلِ نظر

تا ته څو معلوم دى چې قرآت* کښې دي کوم سوز دى
هغه چې تقدير يې ور بدل کړو د عمرτ

(13)

# نوې زمانه

ښه زمانه ده چې کړي دين ترې فريادونه
شته په آزادئ کښې يې زرها رنګه بندونه
رنګ او آب يې ټول د سرېتوب له مخه يوور
جوړ چې بهزادئ کړل د هغې غلط نقشونه

%%%

جوړې د نظر نه يې نقشې د کافرئ دي
پټې په کمال کښې د صنعت يې آذرئ دي

* د حضرت عمرτ د اسلام راوړلو واقعې ته اشاره ده.

و يې ساته ځان د سوداګرو د ټولۍ نه
دا دي جوارۍ چې په ظاهر سوداګرۍ دي

لمسه کړي ځلمو ته ده بلا دا زمانه
ده د ابليس شپې ته ورځ رڼا دا زمانه

زه يې د لمن نه تاؤ را تاؤ لکه لمبه يم
ده چې بې له سوزه بې ځلا دا زمانه

%%%

يو ځای مسلمان کړه فقيري او سلطاني
ګډ سره ضمير يې کړل باقي ؤ که فاني

غوارم و ليکن امان د دغې زمانې نه
دې چې سره يو کړه سلطاني او شيطاني

%%%

څه وايم ګډا دي څنګه ده او څنګه نه ده
دی اثر د بنګو خوشحالي کله د زړه ده

نشته ستا رګونو کښې هغه طوفان د وينې
وايه په تقليد کښې د فرنګ دي ګټه څه ده

**(14)**

## برهمن

خپله ځان ته در دسل فتنو دي پرانستلو
دوه ګامه وې تېر، چي ستا قدم وښويېدلو

ښکلی برهمن ګوره خپل تاخ کړو په بتانو
تا واخست قرآن دي پاس په تاخ کښې کښېښودلو

%%%

ولې به زه وایم برهمن وته بېکاره
ما ته درنه تيږه کړي لږ وګوره هوښياره

نه کيږي بغير د لاسو متو له طاقته
جوړ چي کړي پخپله يو معبود د ځان دپاره

%%%

ګوره برهمن ته چي نظر يې پخپل کار وي
نه ښايي هيچا ته کوم چي ده څخه اسرار وي

ما ته خو دا واېي چي تسپې دي لر کړه پرېږده
دی پخپله ګوره تل په غاړه يې زنار وي

%%%

پاڅه در د غير نه، برهمن وکړو بيان
ډک د پيرزويني دي د خپل وطن ياران

دوه ملايان چري يو جمات کښې نه ځايېږي
ځای شي درمسال کښې داسي دم لري بتان

(15)

## تعليم

چا کښې تاب و تب چي مدامي وي پرې سوځيږي
دا د ژوندون اس لره متروکه ثابتيږي

دغه تاب و تب زده کړه زامنو ته چي ما ته
دا کتاب، مکتب، خو افسانه، جادو ښکاريږي

%%%

سوی چي پکښې نه وي له دې علمه چاره سازه
ډېره ډېره ښه هغه نګاه چي وي پاکبازه

بيا نو لا بهتر دی د هغې پاکي نګاه نه
هغه زړه چي وي له دوه عالمه بې نيازه

%%%

هيڅ د خدای د هغه مسلمان سره کار نشته
روح يې چي دننه په کالبوت کښې بيدار نشته

وتښتېدم ځکه د يارانو له مکتبه
يو زلمی پکښې هم د خودۍ څوکيدار نشته

%%%

دا زما نه زده کړه چي يو ړوند په دوارو سترګو
ښه دی د هغه بينا نه کوم چي غلط بين وي

واوره که ناپوهه وي لېکن چي نېک عمل وي
ډېر ښه دی له هغه دانشمنده چي بې دين وي

%%%

رسي که آسمان ته څه حاصل له هغه فکره
چورلي چي چاپېر له هر ثابت و سياره

وي لکه يوه ټوټه د ابر چي له باده
پورته په وسعت کښې د فضا شي آواره

%%%

پوه وي که ناپوهه په ادب به معلومېږي
ښکلی په ادب چي وي خوشحاله به اوسيږي

هيڅ زما د هغه مسلمان زويه خوښ نه دی
زيات چي وي په پوهه او ادب پکښې کمېږي

%%%

مه شه نااميده د طفلانو نه بې ځايه
خير دی که دماغ يې نارسا ښکاري له ورايه

ښه ده نو اې شېخه! د مکتب که ته پوهېږې
زړه شته په سينه کښې د هغو که نشته وايه؟

%%%

زده کړه دین داش دي و خپل کول ته اې دانا
اوچه کړي نګین يې د سپوږمۍ ستورو ځلا

تا که څه هنر کړو ور تر لاسه بیا يې ګوره
پټ په خپل لستوڼي کښې لري یدِ بیضا

%%%

زړه نه د مارغه د چمن یو يې وړه نوا
هم د ریدي سوز چي يې وو وینه کښې پخوا

څه به کوې ناز په دې مکتب او په دې پوهه
در يې ډوډۍ نه کړه در نه واېي خسته ساه

%%%

خدایه د هغه درویش دي تل ښه وي وختونه
شول لکه غنچه چي يې له دمه تازه زړونه

دا د عا زما د مکتب طفل ته يې وکړه
نه دي شي ډوډۍ لره د هیچا په بندونه

%%%

چا چي "لاالٰه" کړو غوټه واپې خست له ځانه
خلاص شولو له قیده د مکتب او د ملا نه

زړه په هغه دین، هغه دانش، مه تړه چرې
اخلي چي لاسونه خپلې سترګې زړه له ما نه

%%%

وینې چي ته دا چي کاروان مړ کړو رهزنانو
بیا يې څه تپوس کړې څنګه مړ کړو ظالمانو

مه اوسه بې غم له هغه علمه چي يې لولې
روح پرې د يو قام وژل کېدای شي هوښیارانو

%%%

ښکلی ؤ يو ځوان لکه د ګل رنګین کلاه
ؤ د امزرو غوندي نظر يې بې پناه

علم د چیلیو يې حاصل کړو په مکتب کښې
خدای دي ورله ور نه کړي يو پانه د ګیاه

%%%

اوښ ته په صحرا کښې هسي اووې خپل جونګې
خدای د دې څلور کنجه دنیا به چرته وي؟

پلار ورته ویل زویه! چي پښه يې وښویيږي
خدای ورته ښکاره شي او هم ځان و پيژني

**(16)**

## د رزق لټون

وي چي الوتل يې له يو بام تر بله بامه
داسي جره نه رسوي باز تر خپل مقامه

بیا له هغه ښکار ځنې چي یو موټی بڼې وي
ښه دی چي شي مړ پخپله ځاله کښې ناکامه

%%%

تل ساته خپل ځان باندي نظر محرمانه
ځکه چي وي موړه له نظر خپل تازیانه

ځکه يې لټون د رزق پر موږ باندي واجب کړ
شي مو چي د پر د پرانستلو بهانه

%%%

**(17)**

## نهن‌ګ خپل بچي ته

خپل بچي ته څنګه ښه خبره نهنګ وکړه
وې په موږ، زموږ په دين، د سيند غاړه حرامه

ژوه د څپو سره ځان ژغوره له ساحله
دا د سيند دنيا موږ لره ځاله ده تمامه

%%%

نه يې سمندر کښې ته، په تا کښې سمندر دی
خپل ځان دي طوفان ته غورزوه دا دي جوهر دی

ته که يو لحظه يې د څپو نه دمه ګير شوې
بس نو بيا هم دغه سمندر دي غارتګر دی

%%%

**(18)**

# خاتمه

نه مي له ساقي، نه له پيالې، مي درته اووې
وو د عشق حديث په بيباکۍ مي درته اووې

ما چې اورېدلي له پاکانو د امت ؤ
هغه د رندانو په شوخۍ مي درته اووې

%%%

بيا راشه خپل ځان ته لمن ونيسه د زړه
اونيسه مقام خپله سينه کښې شه مېشته

پاڅه دا پټې پخپله وينه کړه خړوبه
ما وشينده تخم او حاصل يې واخله ته

%%%

بل حرم که وايې بې له زړه او نظر نه دی
دا طواف، طواف د چا د بام و د در نه دی

راز دی یو زما او د الله د کور تر میانځه
داسي چي پخپله جبرائیل تري خبر نه دی

%%%

# د عالم انساني په حضور کښي

څه دی سرپټوب خو احترام دی د سړي
شه تري خبردار چي کوم مقام دی د سړي

%%%

# د عالمِ انساني په حضور کښي

## تمهید

### (1)

هغه پخواني زاړه شراب راوړه ساقي!
دا یخنۍ زړلي بوډا ځوان کړه د سپرلي

داسي نوا راکړه چي له خپلي ساه له فیضه
بل لکه مشال کړم د شپېلیو دا لرګي

%%%

يو ځل د حجرې نه د خلوت را وتل بيا كړه
ته سينه فراخه په بادونو د صبا كړه

كوم چې دا خروش دى په مقام د رن‌ګ و بوى كښې
ته يې په ژړا د يو مارغه هومره سوا كړه

%%%

(2)

راوړې زمانې فتنې يارانو! تېره شوله
وه يې كړل روزل د كم اصلانو تېره شوله

خوى يې چنګيزي ؤ چې يې دوه سوه بغداده
كړل لكه د ګور د تور بختانو تېره شوله

%%%

ډېر دي داسي تللي چې اندوه يې وه زغمله
مړه شو پرون ورځ يې د صبا اونه ليدله*

* دا د امير خسرو شعر دى.

سخ شه د هغو چي د لمن ځنې د "نن" يې
نوې په زړګونو هنګامه را ټوله کړله

**(3)**

هيځ لکه بلبل ژړا په زار نه لرې ته
تن لرې خو روح پکښې بيدار نه لرې ته
بيا په دې ګلشن کښې چي روا ګل شو کول دي
زخم يو پوټي قدر د خار نه لرې ته

%%%

راشه د خپل ځان سره وهل پرزول زده کړه
ته پخپلو نوکو د سينې ګرول زده کړه

ليدل که به پرانستو سترګو ته غواړې د خدای
راشه نو په ډاګه د خودی دي ليدل زده کړه

%%%

مه کوه ګيله ته د سختۍ نه د وختونو
څوک چي سختي ونه زغمي هغه کم عيار دی

تا به د ولو د اوښو تـګ خو وي ليدلی
رغړي چي په کاڼو باندي څنګه خوشګوار دی

%%%

څه ښکلې خبره يو کامتر کړه خپل بچي ته
ژوند لکه ريښم په نرم خوی نه شي بسره

چيغه د "ياهو" که اوکړې شوق او په مستۍ کښې
سر نه د شاهين به هم اوچته کړې کپره

%%%

لاړې له مقام کبريائي نه پرېوتې
سر د نا اصيلو په دربار کښې ټيټوې

ته خو يې شاهين خو تر هغې خود شناس نه يې
څو چي ته د خپلې خودۍ دام کښې نه راځې

%%%

ښه به هغه ورځ وي چي خپل ځان و مومې بيا
ده دا فقيري چي اميري کړي در عطا

راز د ټول عمري ژوندون خو پټ دی په یقین کښې
مړ به شې که لاره د ګمان ونیوه تا

%%%

ما غوندې ته هم یې د خپل ځان نه په حجاب
څه ښه هغه ورځ ده، چې ځان او مومې جناب

بیا به کړي کافر دا اندېښه او غم د رزق
تا به کړي کافر دغه خپل علم د کتاب

%%%

وکړه خپل جونګي ته یو اوښ څه ښکلی ګفتار
سخ د هغه کس دی چې پوهیږي پخپل کار

زده کړه دا له موږ چې د صحرا یو زاړه تلوني
ښایي چې په خپله ملا اوچت کاندي خپل بار

**(4)**

یادو کښې زما دي د فرنګ له دانایانو
داسي ډېر رازونه د وجود او د عدم

هوا خو دا دوه تکي درته وايم ويې نغوږه
ما ته را زده کړي يو سپين بږيري د عجم

%%%

اې هغه چي ته نامحرمانو یې وژلی
يو زړه له کربړ دي د غمونو دی پيرلی

ډېر ښه يې صحبت دی د ملا له تاويلونو
څو لحظې د هغو چي یې ځان دی پېژندلی

%%%

**(5)**

دی وجود چي ګورې که نمود دی؟ وايه دا
څه مشکل آسان دی دا حکيم زموږ دانا

هغه د "غوپې" په فن کتاب خو وليکلو
کوز نه شو ليکن هيچرې تل ته د دريا

%%%

غوڅ کړه بېستون دي د ترښځ په يو ګذار
ځکه چي فرصت درلره کم فلك دو رنګ دی

پرېږده حکيمان چي وي په دغه اندېښنه کښې
وځي د ترښځ نه دا شرر او که له سنګ دی

%%%

مه بړده کلك په لاس کښې خپل څراغ د آرزو کړه
پورته شه تر لاسه ته مقام د هاؤ هو کړه

ګوره په چارسو د دې جهان کښې چي ورك نه شې
ځان ته را واپس شه درېٓ ورېٓ دا چار سو کړه

%%%

زړه د سيند د تا دی د سکون نه بېګانه
جيب کښې يې له تا ده د ګوهر يوه دانا

موجه محافظ دي دغې خپل اضطراب اوسه
ځکه چي د سيند د خوني ته يې خزانه

%%%

ښاپي چي را کش کړې ځان ته دا دواړه جهانه
ته‌ښته مناسب نه ده چي وپې کړې له ځانه

ګورې که خپل "نن" دي د "پرون" په نور يې ګوره
غوځ چي شي "پرون" له نن بهر دی له امکانه

%%%

تا را ته خپل ځان کړو را څرګند ريديه ښه وې
لري چي پرده د ښکلي مخ دي کړه دا ته وې

شوې چي را زرغون په ريدي ګل يې نامزد کړې
ته د ښاخ په ډډ کښې چي وې څرنګه وې؟ څه وې؟

%%%

**(6)**

نه ژاړي ځوانمرد چري له درده رنځه غمه
هم يې وي ګيله د زمانې نه په زړه کمه

ستا غوندي ژړا د هغه نه ده قياس مه کړه
سوز او له مستۍ يې وي ژړا نه له المه

%%%

مه ګڼه چې شي به مېړنی د امتحان مړ
نه مري كه هر ځو شولو د لاندي د آسمان مړ

ستا سره هم دا شاني مرګ ښايي او كه نه وي
بيا دي په كوم مرګ چې وي رضا شې به آسان مړ

%%%

خاوره كه د تن دي وي د روح نه نا محرمه
ښاخ به دي هم اوچ وي د نيسان له ښكلي نمه

خلاص به شې له غمه محافظ دي د خپل دم شه
نشته غم چې ډكه دي سينه ساتې له دمه

%%%

هره ساه زموږ وي پرېشانه له ځو غمه
بيا په هر يو غم كښې وي شريك ځو نامحرمه

دومره ده چې ته پرې د "صبا" بنياد كيښوى شې
پوه كه په بها يې يې لرې چې دا ځو دمه

%%%

هغه مېړنی چي يې په ځان ؤ اعتبار
جوړه يې يې خوفه په سيندونو کښې کړله لار

مست که په جلوو باندي نظر شي دا روا دی
اوسه و لېکن له زړه او لاسو خبردار

%%%

زړه مو د هغو ټولو غمونو نه دردمند دی
اصل يې له دې نابوده خاورو چي څرګند دی

زه او ته له هغه خواږه غم نه خبر نه يو
اصل د هغه چي له افکارو دی بلند دی

%%%

مه وايه چي خدای راسره دا وکړه بې خونده
ځکه چي لمن خپله څنډلی شې له ګرده

پاڅه لاندي باندي دا عالم کړه چي په دې کښې
داؤ د جواری ګټي نامرد له يو ځوانمرده

%%%

اوباسه کين دي له سينې چي دود د خونې
ښه وي بلا ښه، د دريچې په لار وتلې

ور چي نه کړې ته خراج د زړه د پټي چا ته
اې د کلي نېکه ګوره وران چي نه کړې کلی

%%%

ډېر يې دي د شپې په ګرېبان کښې سحرونه
ځلند يې د مخ له ستوري دواړه جهانونه

مړد چي وي د حق، نوره يې څه نخښه اوښايم
شونډو کښې موسيږي د مرګې په چپاوونه

%%%

## (7)

پرخې په ژړا، د سحر باد وته دا اووې
ستا ځنې لرمه زه اميد د يو نظر

زړه مي دی تور شوی د ګلانو له صحبته
توی چي په ګياه شم داسي تېر شه په ما بر

**(8)**

# زړه

زړه دی هغه بحر چي ساحل تري نه جوړیږي
موج کښې يې هيبت دی چي نهنګ تري نه رپيږي
هغه يو سيلاب چي سل هامونه را نغښتی شي
دغه لوی فلک يې يو حباب ته نه رسيږي

%%%

اور دی زما زړه او تن زما د هغه دود دی
دم په دم چي سوځم دغه ساز يې د وجود دی

دی يې جمعيت زما د نيمې شپې له ذکره
لړزنده پاره چي يې قرار په چوب عود دی

%%%

کار د هغه خپله زمانه وړي مخ په وړاندي
وي چي د درويش نظر په خپله خودۍ باندي

فقر و سلطاني ده، هم دا اوساتي چي خپل زړه
خپله مرغلره لكه سيند د نظر لاندي

%%%

نه چري خپل زور دي د خودۍ دی ازمايلی
نه دي تر د خپلو لاسو پښو دی پرانستلی

وه به زولنه هم دغه خپل عقل سرې ته
خدای که په سينه کښې ورته زړه نه وي بخښلی

%%%

داسي وايې ته چي زړه پيدا له خاك و خون دی
هغه په جادو کښې ګرفتار د کاف و نون دی

زړه زموږ منم چي په سينه کښې وي زموږه
بيا هم د جهان ځنې زموږ هغه بېرون دی

%%%

لمر، سپوږمۍ جهان يې نه دی خلاص د زناری نه
وا شي هره غوټه هم د هغه د زاری نه

ورکړه هندوستان وته پيغام زما د لوري
تل غلام آزاد شي د هغه د بې زارۍ نه

%%%

زه او ته پټي يو د الله دا يې حاصل دی
ناوې د ژوندون لره هم دغه خو محمل دی

ګرد شولو د لاري چي دانا ؤ د رازونو
پوی نه يې چي عقل ورته وايي؟ دغه دل دی

%%%

کله په طلب کښې دی د حسن د غريب
کله د صليب پر سر ولاړ لکه خطيب

کله وي بادشاه چي لاؤ لښکر ورسره ښکاري
وي سره د دې د خپل دولت نه بې نصيب

%%%

مه ګڼه جهان د رن‌ګ او بوی، جهان د زړه
نه کوڅه محل، نه يې خاته، نه پرېواته

نه څلور اطرافه پکښې نه مځکه آسمان شته
بې د الله هو په دې عالم کښې نشته څه

%%%

وليدو نظر او اندازې پيدا کړې عقل
غوارې چي پرې کچ کړي دا څلور اړخه جهان

هغه مست د ميو چي په زړه بللی کيږي
را يې ښکلو واړه رنګ و بو ترې له خپل ځان

%%%

څه دی محبت؟ خو يو تاثير دی د نظر
څه خوږ يې پرهر دی چي له تېر دی د نظر

ښکار ته ځې د زړه؟ نو دا ترکش خو دي ارتاؤ کړه
ځکه چي دا ښکار د تا نخچير دی د نظر

%%%

**(9)**

## خودي

نور د کبریا دی چي پرې ځلك وهي خودي
جوړې رسائي کړی د هغه نارسائي

وصل يې مقام د جدائي له مقاماتو
ده له مقاماتو د وصال يې جدائي

%%%

تېر چي شي کوم قام له لا له حاصله ګفتګو
هله يې را وټوکيږي خاورو ته آرزو

بیا دغه خودي شي د آرزو نه تېره توره
داسي چي ګذار يې دوه ټوټې کړي رنګ و بو

%%%

مومي دا خودي وجود د پاك رب له وجوده
مومي دا خودي نمود، د پاك رب له نموده

نه پوهيږم زه چي به دا ځلنده ګوهر
کوم مقام کښې دی که دا درياب دی ناموجوده

%%%

زړه چي کړي د ختو آشنائي هغه ککړ شي
خوند ترې د خوبونو د غفلت واخلي خر پړ شي

"زه" کاندي پيدا کومه ګړئ چي را بيدار شي
بيا که دغه "زه" د تن محکوم شي هغه مړ شي

%%%

وصل مي وصال دی خو وصال دی په فراق کښې
دا غوټه څوك نه شي پرانستې بې له نظر

ورك وي همېشه ګوهر په غېږ کښې د درياب
بيا د سيند اوبه خو اوبه نه دي د ګوهر

%%%

دا زما دا موتې خاوره ده له هغه دره
ګل او کشمالو مي دي له هغه ابرِ تره

نه يمه خبر څه به "زه" څه به "هغه" وي
"زه" دی په هغه کښې يمه دومره باخبره

%%%

**(10)**

# جبراواختيار

دا مي دى ايمان چي لوى ښتن به ضرور كيدي
تَلَه د عمل د دې نړۍ و هر هر څه ته

ويره مي له دې ده چي صبا ته په قيامت كښې
دا چاره به سمه وي نه ما ته نه هغه ته

%%%

يو بوډا راهب را ته روما كښې شو ګويانه
شته يوه نكته راڅخه واپي خله زما نه

هر يو قام د ځان دپاره خپله مرګ پيدا كړه
تاسو تقدير مره كړئ، موږ تدبير اووژلو ځوانه

**(11)**

# مرګ

اورم چي مرګی يوه ورځ خدای ته داسي اووې
څومره دا وچ سترګي دي له خاورو چي زېږېږي

زه چي د هغه ځنې روح اخلمه شرمېږم
يم حيران هغه ته، چي له مرينې نه شرمېږي

%%%

ته ورکړه ثبات چي هغه مير د شش جهات دی
هم يې په لاسونو کښې زمام د کائينات دی

نه شرمېږي هغه د خوارۍ ځنې د مريني
ځکه بې خبر چي له ناموسه د حيات دی

**(12)**

## ووايه ابليس ته

ووايه ابليس ته دا له ما ورکړه پيغام
ووايه پرېږدي به تر څو ګير يې په دام

ما ته دا جهان د خاورو هيڅ ښنه نه ښکارېږي
ځکه چي سحر يې دی استازی د ماښام

%%%

دا جهان چې جوړ يې د عدم نه کړو هر کوره
يخ يې ؤ ضمير او هم خالي پروت ؤ له شوره

بې زما له ځانه سوی ؤ چرته راته وايه
ستا هستي يې هم کړله پيدا زما له اوره

%%%

ستړګي د شوق لا شولې روښانه په بېلتون
لا بېلتانه زيات د شوق په زړه کښې کړو لټون

حال به څنګه ستا وي؟ زه د دې نه خبر نه يم
زه خپل آب و ګل پوی کړم د خپل ځان په مضمون

%%%

پوهه يم چې ته يې د خپل در نه اوشړلې
بيا يې په طاغوت، رجيم، کافر هم وبللې

زه ترې د ازل نه په کړاؤ يمه تر اوسه
وني د اغزو مي يې چې زړه کښې دي کرلې

%%%

ته خو مې خبر يې له صواب او ناصوابه
ټوکيږي نه دانه زما له دې پټي خرابه

تا سجده ونه کړله په ما دي زړه زهير شو
واخسته په ځان زما ګناه دي بې حسابه

%%%

راشه د شطرنج وکړو بازۍ لکه شاهان
ويلې چې له سوزه کړو څلور کنجه جهان

جوړ يې چې د پاڼي د وښو نه په هنر کړو
يو ښکلې جنت چې دې خوا ته د آسمان

%%%

# خاکي ابلیس او ناري ابلیس

ښه د دې حاضرې زمانې فساد اظهار دی
ټول جهان د دې له بدو چارو شرمسار دی

ذوق دي که پیدا کړو د نظر نو، شیطانان خو
دوه سوه که هم وي، نو هر یو دي خدمتګار دی

%%%

هر طرف ته دي د غوږ، د سترګو، رهزنان
سخته کاندي شوکه دا د زړونو، ظالمان

غټ غټ ګناهونه خرڅوي په یو کنجکه
ځکه چې دي ډېر ارزان فروش سوداګران

%%%

څه دی شیطان هغه اپوټه چې کاندي یون
هغه چې رندې کړي درله سترګې په افسون

زه په حقیقت کښې هغه مړ شیطان ګڼمه
هغه چې به ښکار کوي د تا غوندې زبون

%%%

څه ډکه د زهرو د هغه ده پیمانه
مړ کړي روح، خو تن ترې بې خبر او بیګانه

ته خو به حلقه د دام یې وینې چې ښکاره ده
نه ښکاري چې دام لري دننه په دانه

%%%

دی چې دا بشر د خپل مقام نه غورزولی
څومره چې محکم وي هغه هومره بربښیدلی

وي دې تا ګناه به هم بې خونده یخه پخه
ستا ابلیس که وي چرې له خاورو زیږیدلی

%%%

ښکار نه شي د دغې زمانې د ابلیسانو
ښه راځي غمزه چې د هغوی په رذیلانو

ښه دی اصیلانو ته هم هغه ابلیس ښه دی
خدای یې چې لیدلی او ښه پوخ دی هوښیارانو

%%%

کلك ولاړ ګذار ته د هغه مردِ میدان دی
زیړنده دا اور چې دی هغه بلند مقام دی

هر خاکي هغه لره لائق د ګذار نه دی
ځکه چې کوم ښکار وي خوار، په ده باندي حرام دی

%%%

څه هم که له فهمه د ناولیو خلګو دور دی
بیا هم درته ښایم دا نکته په ما ضرور دی

روغ د دغو نوو ابلیسانو سره نه دی
هغه ګنهکار، د طبعیت نه چې غیور دی

%%%

## دلاري ملګروته

راشئ کنه! کار د دې امت چې سره ساز کړو
موږ چې مېړنو غوندې قمار د ژوند آغاز کړو

داسي په جمات کښې د ښار وژاړو په کوکو
زړه چې په سينه کښې د ملا صاحب گداز کړو

%%%

# دلاري ملگروته(2)

## (1)

باز دی دلاور دی قلندر د آسمانونو
دروند کار که دي سپک شي د هغه په وزرونو

پورته شه فضا د هغه کار لره ورشو ده
نه چوړلي له جالو، ځان ساتي له دې عيبونو

%%%

روح نه مي نغمه د الله هو را ووتله
گرد غوندي د رخت نه د هستۍ ودورېدله

ساز واخله له ما چي د زخمك له سوزه تار يې
دا لكه چي اوښكې دي زما وڅڅوله

%%%

اوښكي غوندي زړه كښې د فطرت چي تړپېدمه
ستر‌ګو ته يې زه په تړپېدو ورسېدمه

وګوره رڼا زما، د هغه د ښو نه
ځكه د وښو د پاڅه كم و څڅېدمه

%%%

بوى راغلو ما ته له منطقه ده خامي
دى دليل د هغه د هغه نا تمامي

پوري دروازې كړي د اسرارو راته ببرته
دوه بيته چي وي د پير د روم<sup>رح</sup> يا د جامي<sup>رح</sup>

%%%

راشه كنه! واخله له ما هغه پخواني
هغه چي ژوند خاورو د پيالې ته وركوي

چرته که اوبه ورته زما له ښيښې ورکړې
لوی به پرې لاله شي لکه قد دی د سرې

%%%

دی زما په لاس کښې هم هغه پخوانی چنګ
شته پکښې دننه ژړاګاني رن-ګ په رن-ګ

هوا خو بږغول يې د زمري په نوك پکار دی
ځکه چې تارونه يې رګونه دي د سنګ

%%%

يو مې سه د دهر پروېزانو ته خبرونه
نه يم زه فرهاد چې تېر تر خځ ته کړم لاسونه

زه په هغه يو اغزي چې ښخ مې دی په زړه کښې
غوځ به د سلګونو بېستونو کړمه زړونه

%%%

زه يمه فقير ساز و سامان مې يو نظر دی
ما ته وچ واښه ښکاري يارانو ته چې غر دی

ښه د هغه باز ځنې کارغه د اديرې دی
روږدی چي په لاس د يو بادشاه قوله په سر دی

%%%

هيچا ته د زړه دروازه پوري نه کړه ما
نه زه له خپلوانو له دوستانو شوم جدا

ځای مي د استوګنې ځان ته جوړ کړو په سينه کښې
خوښ يم د دې چورلنده فلك لاندي سدا

%%%

شته په دې چمن کښې نه مي آب او نه مي جاه
شته مي په نصيب کښې نه قبا او نه کلاه

ما ته ګلچين وايي تا چمن وران آموخته کړو
ما چي د نرګس سترګو ته ورکړله نګاه

%%%

دوو سوو هوښيارو دې محفل کښې سخن اووې
لا يې ترې نازك لکه چي برګ د سمن اووې

اووایه لیکن ما ته هغه سترګور څوك دي؟
و يې کتل اغزي ته، حال يې ټول د چمن اووې

%%%

ما وته معلوم دي نه علمونه نه فنونه
ور مي کړل سخن ته په بل ډول مقامونه

کوم چي زما سوز او کوم سرور ؤ په کاروان کښې
پورته پرې سپین ږېرو سپك او تند کړه قدمونه

%%%

نه پوهیږې ته چي زه مارغه یم د صبا
نه پیژنم بل څه بې د سوز او د ژړا

مه پرېږده لمن مي چي به اولولې بېشکه
ته کنجي د باغ پرته په ځاله کښې زما

%%%

ښکاري دا جهان راته ښځي یو رهګذر
نه مي شته زرګونو لاروو کښې همسفر

صبر مي کړه زړه له دې خوښانو له خپلوانو
ځکه چي د دوی نه پردی نشته بل بشر

%%%

پاڅه "ناشته والي" کښې هم ته شته کېدل زده کړه
ته خپلي بها لره هر دم زياتول زده کړه

راشه په نغمه کښې مي شه محو که پوهېږې
دُر غوندي طوفان کښې مي آرام اوسېدل زده کړه

%%%

زه پخوانی دې خاکي جهان پالل يمه
بيا هم له دې خپل مقامه ستړی زړه لرمه

څو که را زرغون شوم هم د ده د نم له فيضه
بيا هم خپل آسمان زه دغه مځکه نه گڼمه

%%%

پوی به نه شي څوک چي نامحروم وي د مردانو
زړونه چي ژوندي دي، دا په دم دي د مردانو

ځان ساتي له آه و له فریاد و له فغانه
تل د ځوانمرډانو غوندي غم وي د مردانو

%%%

اوزېړو نظر په تن کښې اووینه خپل ځان
هغه ګل چې نه دی لا د ښاخه نمایان

او که نه، په شانې د یو غشي په لینده کښې
راشه په نظر د تېر انداز اوله ښان

%%%

نه دی د یقین له ذوقه عقل خبردار
بد پې دی ملګری د حکمت علمِ قمار

دوه سوه رازي‌رح او بو حامدرح پې سیالان نه دي
هغه یو ناپوهه چې لیدای شي خپله لار

%%%

ووایه سامان و زر او لعل و ګوهر څه دي؟
دا زرین کمر غلامان ځلند بشر څه دي

دی له دوه جهانه بې پروا لکه چې خدای دی
دا بې سرمایه نور خاوندان د هنر څه دي؟

%%%

هوش مي دی خودۍ لره نشه چې ده زما
کم له میخانې مي ځکه شور وزي سدا

دېر هم که خیرنه ناصفا ده ته يې اوڅښنه
خټه د پرون د خم لري دغه صهبا

%%%

ستا که د چیني د منډوسه سره کار دی
ما ته له خپل ځان راغلی بوی د یو نګار دی

بس دغه لرګی دي د شپېلۍ رالره پنګه
نه مي د منبر او نه لرګي پکار د دار دی

%%%

ما چې جوهر ولید د خپل ځان په آئینه کښې
جوړ مي کړو خلوت ځان ته دننه په سینه کښې

زه له دې رندو او د بې ذوقه هوښيارانو
وتښتېدم، خوش يم، په غمونو ديرينه کښې

%%%

پورته چې مي کړه کړه د ژوند له دې جهانه
هر چا به هم دا ويل چې دی زما آشنا ؤ

هيڅوك مګر پوی نه شو، په دې چې دی غريب
څه ويل؟ او چا ته؟ او راغلی له کوم خوا ؤ

**(2)**

زړه که بې دانا وي او صفا بې وي ضمير
وي داسي فقير په تشو لاسو هم امير

وي که په اوږه د يو منعم بې دين ناپوهه
نه ده قبا، کته ده، خو کته د حرير

**(3)**

ته سجده کوې ورته دارا وي او که جم
ولې اې ناپوهه! شرموې داسي حرم

پام کوه حاجت دي فیرنګي ته وړاندي نه کړې
اوغورزوه ته د زړه له تاخه دا صنم

%%%

ما وروکی پارکی اوریدلی له یو پیر
ډیر چي دانشمند ؤ پخوانی روشن ضمیر

وې که يې خودي په ناداری کښې اوساتله
کړي دواړه جهانه به تر لاس هغه فقیر

%%%

پټ دی په دوه حرفه کښې د ژوند چي کوم اسرار دی
هیڅ کله منبر د عشق مقام مه ګڼه دار دی

نه ډاریږي هیڅ یو ابراهیم له نمرودانو
ځکه چي د عود کچه لرګی ته اور عیار دی

%%%

مه غواړه ريديه له هيچا غم ګساري
ما غوندي دننه له ځان وغواړه ياري

غبړ ورته پرانېزه چي کوم باد راشي خود داره
مه پرېږده د خپل پخواني داغ چوکيداري

%%%

ياد له يو سپين بږيرى مي دي دا دوه نصيحته
نه ښايي چي څوك بې خپله روحه په بل ژوي

تښته له هغه سړي چي لاس يې بل ته تيت وي
روح کاندي په بل باندي ګانه څه که تل ژوي؟

%%%

اوئې وې ساحل ته چي يو موج ؤ بې قرار
زه به يو فرعون لره خپل ځان کړمه معيار

کله به خپل ځان کښي تاؤ را تاؤ کړمه معيار
کله به ګډيږمه په ذوق انتظار

%%%

ستا دا مرتبه او د مخ آب که له فرنګ وي
مه بړده خپل تندی بې له هغه د بل پر در

اونیسه کوتک ته بې خپل ځان څه بده نه ده
ځکه چې دا حق د خر والا دی په خپل خر

%%%

نه دی فیرنګي لره زړه لاندې تر نګین
دي بې ټول ملکونه خو بس یو نه لري دین

داسې یو ځښتن دی چې طواف کښې د حرم بې
شته دې شل ابلیسه نشته یو روح الامین

**(4)**

ما او تا د زړه او هم د دین نه لاس وینځلي
یو لکه د ګل د بوی له اصله تښتېدلي

دین زموږه هم زموږ د زړه له مړیني مړ شو
موږه دي دوه مرګه په یوه سودا پیرلي

%%%

هغه مسلمان چي دی خبر په راز د دين
تيټ به غيرالله ته هيڅري نه کړي جبين

ونه چورلي سم که د مقصد سره فلك يې
وګرځوي دی پخپل مقصد به دا زمين

%%%

خوی يې د پردو دی نه دی زره له دې خاکدانه
شپه او ورځ يې هم نه دي له دور د آسمانه

ولټوه وخت دي خپل قيام لره پخپله
لمونځ خو وي د عشق او د مستۍ بې له اذانه

%%%

نشته دی مقام د شوق چي صدق و يقين نشته
دا دواړه بيا بې صحبت د روح الامين نشته

وي در څخه برخه که له صدق او له يقينه
پند کوه زړور درته هيڅوك په کمين نشته

%%%

بس دی مسلمان لره عرفان دغه ادراك
وګوري صفا چي ځان کښې رمز د لولاك⊠

خدای نه شي راتلای زموږ په پوهه کښې هیچري
وپېژنه هغه چي يې وې "ماعرفناك*

%%%

وسپارلو ځان دي د فرنګ په سرو بتانو
مړ په بتخانه کښې يې په شان د نامردانو

عقل دي د زړه نه بېګانه، سینه بې سوزه
تا چي شراب نوش نه کړه له تا که د نیکانو

%%%

نه هر کس له خپله ځانه تېر نه په ګداز دي
نه هر یو سړی د نیاز په حال کښې مست د ناز دي

ده د لاالٰه قبا په سرو وینو لړلې
دا اوږد لباس دی د نامرد په قد دراز دي

⊠ تلمیح په حدیث: "لولاك لولاك لما خلقت الافلاك.
* حدیث: "ما عرفناك حق معرفتك.

%%%

سوزي پرې مومن چي يې خپل تاؤ دی په وجود کښې
دې کشود د هرې غوټې هم د ده کشود کښې

ښکاري په قيام کښې جلالت د کبريا يې
هم ښکاره جمال د بندګۍ يې په سجود کښې

%%%

څه پوښتې چي څه رنګه وي لمونځ عاشقانه
وي رکوع يې هم لکه سجود محرمانه

دومره تب او تاب يې وي يوه الله اکبر کښې
نه ځايېږي ستاسو په تمامه پنجګانه

%%%

وي يې دوه جهانو ته بلنه په قرات کښې
ژوند ابدي پټ د مسلمان پخپل رکعت کښې

پوی د دې بې سوزه زمانې مړې پرې څه دي
شته دی قيامتونه د هغه په "قدقامت" کښې

**(5)**

پوی د رزاقؔ په راز فرنګ دی په ښه شان
واخلي له هغه ده ته يې ورکړي په احسان

بیا په داسي ډول رسوي روزي شيطان
خپله پاك الله يې هم دې كار ته شي حيران

%%%

نشته څه حاجت چي اوږدوم درته داستان
واخله په يو حرف چي پټ اسرار كړم درعيان

خپل همه جهان يې سوداګرو وته ورکړ
څه خبر په قدر د مکان دی، لا مکان

%%%

یو جنت دپاره د پاکانو د حرم دی
یو جنت دپاره د اربابو د همم دی

ووایه مسلم د هندوستان ته خوشحالي کړه
یو جنت د خدای په رضا مفت او ويړيا هم دی

**(6)**

**نيت دا قلندر، د تقرير نه لري هيڅ**
**بې د دې نکتې نه بل اکسير نه لري هيڅ**

**نشته دی حاصل څه د هغه شډل پټي نه**
**پنه چي د وينو د شبير نه لري هيڅ**

پای